# وخت له تا مينه غواړي!

وخت؛ د قرآن و سنت، سلف صالحينو او پوهانو په هېنداره کې!






مولوي محمد غني فاروقي

وخت؛ د قرآن و سنت، سلف صالحینو او
پوهانو په هېنداره کې.

# وخت له تا مینه غواړي!



لیکوال: مولوي محمدغني فاروقي




بسم الله الرحمن الرحیم


**د کتاب ځانګړنې:**

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | وخت له تا مینه غواړي! |
| لیکوال | : | مولوي محمد غني فاروقي |
| اړیکې | : | ۰۷۹۹۸۰۰۹۳۵ |
| | | ghanifarooqi۱٤۳@gmail.com |
| خپرندوی | : | باور خپرندویه ټولنه |
| کمپوز | : | عبید الله فاروقي |
| چاپ کال | : | ۱۳۹۵هـ ش |
| د خپرونو لړ | : | پینځلسم (۱۵) |
| چاپ شمیر | : | ۱۱۰۰ ټوکه |

باور کتاب پلورنځی، لاندینی پوړ، اسحاق زي مارکېټ، بزازی څلورلارې، جلال اباد

اړیکه: ۰۷۷-۲۷۰۲۰۰٤ , ۰۷۸-۷۷۳۰۰۰۵ , ۰۷۹-۵۳۵۳٦۱۰

# ډالۍ

سترې اسلامي او تاريخي څېرې ته!

هغه چې د وخت ارزښت ته ژمن و.

هغه، چې د علمي او څېړنيزو اثارو شمېر يې

د عمر له کلونو زيات دی.

هو؛ د اسلامي نړۍ ځلانده ستوري شيخ

الاسلام ابن تيميه رحمه الله ته!

م. غ فاروقي

# زما وخته!

پوهېږم ته به له ما نه ډېر خفه يې، ته چې په څومره ارزښت ارزې او څومره گرانبيه يې؟! هومره قدر دې نه ما او نه زما ملگرو کړی.

اه!!! د الله سترې ډالۍ!

کاش ستا له ارزښتمن حيثيت سره مې مناسبه مينه کړې وی، هو؛ هومره مينه چې له تا سره ښائېږي.

وخته! ته مې د رب هغه ډالۍ يې چې ستا ارزښت يې پر قراني قسمونو لا زيات گرانبيه کړی، د بېلگې په توگه:

(وَٱلۡعَصۡرِ ۝١).

ژباړه: قسم دی په وخت د مازيگر.

(وَٱلۡفَجۡرِ ۝١ وَلَيَالٍ عَشۡرٖ ۝٢ وَٱلشَّفۡعِ وَٱلۡوَتۡرِ ۝٣).

ژباړه: قسم دی په سهار، او په لسو شپو، او په جفت او طاق.

(وَٱلَّيۡلِ إِذَا يَغۡشَىٰ ۝١ وَٱلنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّىٰ ۝٢)،

ژباړه: قسم دی په شپه کله چې راخوره شي، او په ورځ، کله چې روښانه شي.

(وَٱلضُّحَىٰ ۝١ وَٱلَّيۡلِ إِذَا سَجَىٰ ۝٢).

ژباړه: قسم دی د ورځې په رڼا، او په شپه، کله چې راخوره شي.

پر قراني پلوشو سينگاره ياره!

ستا د ارزښت پېژندل، د خپل ژوند د بري راز پېژندل دي، هغوی تل بريمن وي چې ستا اهميت ته ژمن وي، له تا سره مينه کوي او ستا شېبې، ثانيې، دقيقې پر الهي ذکر، تلاوت او روا چارو سينگاروي،

دوی په وینا دا حقیقت درک کړی وي چې ( وخت د تورې په څېر دی، که دې پرېکړ او که نه تا پرېکوي).

وخته! د قران کريم سپېڅلی تاريخ پر دې شاهد دی چې چا له تا سره مینه کړې، ته يې پاللی يې، ستا د قیمتي شېبو او ګلورینو پلوشو قدر يې کړی، ستا په غېږه کې يې د خپل خالق حقونه پېژندلي، د عبادت هدف، موخت يې زده کړی او ستا د پېژندنې پر مټ يې خپل ژوند ته د دنيوي او اخروي ښايست په لټه کې ډالی کړی، شوګیرونه يې کړي، سترګو يې خوبونه پرېښي، نفس يې خپلې غوښتنې قرباني کړي، زړه يې نازونه پرېښي، د الله رضا او ستا ښکلا يې د اخرت بريا ګڼلې.

اوس نو د هغوی تاريخ روښانه دی، د هغو ياد په قراني کتاب کې راغلی، د هغو نومونه له عرش نه بره ياد شوي، ملائکو ورته دعاګانې کړې، ننداري ته يې راغلي، په ژوند کې په رنګارنګ مادي او معنوي نعمتونو نازول شوي.

او تر ټولو ستره بريا يې داده چې تاته په مینه ژمن و، ځکه الله تعالی ورسره د خپلې مينې اعلان کړی.

اوس هم ته يې، ژوند شته، شېبې ورځې او شپې شته، که څوک تا ښايسته کړي، په ايمان، اسلام او نبوي اخلاقو دې ښايسته کړي، له تا نه ګټه پورته کړي، تا ضايع نه کړي، امېد دی، دوی به هم ستوري شي، رڼا ګانې به پکې پيداشي او د دنيا په اسمان به وځلېږي.

وخته! زه هم د رب شکريه ادا کوم، د زړه له تله د شکر خوږه کلمه (الحمدلله) وايم چې توفيق يې راکړ او څو شېبې مې ستا له ګرانبيه خزانې څخه د خپل ژوند کتاب ته ډالی کړې او بيا له تا مننندوی يم چې د خپلو احساناتو هار دې راتر غاړې کړ او څو کرښې مې ستا په مينه خپلو ورونو، خويندو ته د کاغذ پر مخ وښکې، په دې هيله چې

لوستونکي مې خوښ او له تا سره د مینې لپاره ترې څه رنګ او خوند تر لاسه کړي.

زما ګرانه وختهـ!

ستا پر اجازه غواړم له هغو هم مننه وکړم چې له تا سره په مینه کې یې زما مانیز ملاتړ کړی.

هو؛ د باور خپرندویه ټولنې مشر حاجي، قاري قدرت الله تائب چې (وخت له تا مینه غواړي!) کتاب یې راته چاپ کړ.

د کلید راډیو پخوانی د نشراتو مسؤل یوسف ظریفي یاد هم اړین بولم چې کله ما دا نوم غوره کړ، بیا مې له هغه وغوښتل چې په دې نوم پاڼه جوړول غواړم، هغه په ډېره مینه راته پاڼه جوړه کړه او تر ډېره ظریفي صیب او د کلید راډیو تخنیکي مسؤل ګران جاوېدالله نبي زاده زما د کتابونو او غږیزو مرکو پر مټ چلوله، له دواړو د زړه له تله منندوی یم. اوس هم په دې نوم پاڼه لرم او خپله ترې خپلې لیکنې خپروم.

د خپل زوی عبیدالله جان فاروقي مینه هم ستایم چې په ورین تندي یې ( وخت له تا مینه غواړي!) کتاب کمپوز کړ، یوه خبره د یادولو وړ ده چې دې کتاب کې ډېرې لیکنې زما خپلې دي او عبیدالله جان په خپل نوښت له هغه لیکنو سره زما نوم لیکلی په دې هیله چې ګرم مې ونه بولئ.

نور مو د وخت زرینې شېبې نه نیسم په، په پای کې د خپلې لورکۍ رقیه فاروقي له احساناتو هم منندوی یم چې تل راسره د مرستې لړۍ جاري ساتي، له تاسو هم مننه چې د وخت په ارزښت پوهېږئ او کتاب لولئ.

## وخت په قران کې

د الله تعالی سنت دادي چې کله انسانانو ته د يو څيز ارزښت په نښه کوي نو؛ پر هغه څيز قسم کوي يا يې په اړه کلکه سپارښتنه کوي، په همدې لړ کې وخت هم شامل دی، د قران کريم په ډېرې ځايونو کې پر وخت قسم ياد شوی، د بېلگې په توگه

وَٱلْفَجْرِ ﴿١﴾ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ﴿٢﴾ وَٱلشَّفْعِ وَٱلْوَتْرِ ﴿٣﴾ وَٱلَّيْلِ إِذَا يَسْرِ ﴿٤﴾ هَلْ فِى ذَٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِى حِجْرٍ ﴿٥﴾

ژباړه: قسم دی پر وخت د سبا، او پر لسو شپو، او په جفت او طاق باندې، او پر شپه چې کله روانه شي، يقيناً شته په دې کې پوره حصه عقل والاو ته.

همدا راز په سورت شمس کې الله تعالی داسې قسمونه کړي:

وَٱلشَّمْسِ وَضُحَىٰهَا ﴿١﴾ وَٱلْقَمَرِ إِذَا تَلَىٰهَا ﴿٢﴾ وَٱلنَّهَارِ إِذَا جَلَّىٰهَا ﴿٣﴾ وَٱلَّيْلِ إِذَا يَغْشَىٰهَا ﴿٤﴾ وَٱلسَّمَآءِ وَمَا بَنَىٰهَا ﴿٥﴾ وَٱلْأَرْضِ وَمَا طَحَىٰهَا ﴿٦﴾ وَنَفْسٍ وَمَا سَوَّىٰهَا ﴿٧﴾

ژباړه: قسم دی پر لمر او په رڼا د هغې په وخت د ساخت کې، او قسم دی پر سپوږمۍ کله چې راشي د لمر پسې، او قسم دی پر ورځ کله چې ښکاره کړي لمر لره، او قسم دی پر شپه کله چې پټ کړي لمر لره،

- او قسم دی په اسمان او په هغه چا چې اسمان يې جوړ کړی دی، او قسم دی پر زمکه او پر هغه چا چې غوړولې يې ده دا زمکه، او قسم دی پر نفس او پر هغه چا چې دا يې برابر جوړ کړی دی.

وَٱلَّيۡلِ إِذَا يَغۡشَىٰ ۝١ وَٱلنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّىٰ ۝٢

ژباړه: قسم دی پر شپه کله چې راوغوړېږي، او قسم دی په ورځ کله چې روښانه شي.

همدارنګه د ساخت په وخت الله قسم یاد کړی:

وَٱلضُّحَىٰ ۝١ وَٱلَّيۡلِ إِذَا سَجَىٰ ۝٢

ژباړه: قسم دی پر وخت د ساخت، او پر شپه کله چې وغوړېږي.

الله تعالی پر زمانه او د مازیګر پر وخت هم قسم کړی:

وَٱلۡعَصۡرِ ۝١ إِنَّ ٱلۡإِنسَٰنَ لَفِي خُسۡرٍ ۝٢ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَتَوَاصَوۡاْ بِٱلۡحَقِّ وَتَوَاصَوۡاْ بِٱلصَّبۡرِ ۝٣

ژباړه: قسم دی پر زمانه چې یقیناً انسان هرو مرو په تاوان کې دی، مګر هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او عملونه یې کړي دي د سنت مطابق او پخه وینا یې کړې یو بل ته د حق او پخه وینا یې کړې یو بل ته د صبر.

ددې سورت په تفسیر کې دوه قولونه مشهور دي:

لومړی دا چې مراد له دې نه زمانه ده، چې په هغې کې مختلف حالات او واقعات د انبیاء علیهم السلام او د قومونو د هغوی او عذابونه د منکرینو او نجات د مومنانو واقع شوی، نو؛ ذکر د ظرف او مراد ترې نه مظروف دی.

دوهم قول دادی : چې مراد له دې نه وخت د مازیګر دی، چې د ورځې اخري وخت دی او دغه وخت د تاجرانو او مزدورانو د ګټې او

تاوان وخت دی او په صحيح حديث کې هم دې ته اشاره شوې چې هغه څوک چې لمونځ د مازيګر د هغه نه پاتې شو نو ګويا چې اهل او مال يې تاواني شو. (1)

له يادو قراني بېلګو معلومېږي چې وخت تر ټولو ارزښتمن څيز دی، څکه يې الله تعالی په خپل سپېڅلي کتاب قران کريم کې يادونه کړې، ښايي د وخت ارزښت ته پاملرنه وشي چې نتيجه د مؤمن بنده شخصيت په دواړو نړيو کې وځلېږي.

(عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ: الصِّحَّةُ وَالفَرَاغُ) (2)

ژباړه: ابن عباس رضی الله عنهما د حديث راوي دی، محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم ويلي: دوه نعمتونه دي چې ډېری خلکو پکې تاوان کړی دی: صحت (روغتيا) او اوزګارتيا.

هوډ د ارادې پيل دی او همت يې پای دی. [م.غ فاروقي]

شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله د څينو الهي اثارو په بنسټ ويلي :
الله تعالی وايي: زه د حکيم خبرو ته نه ګورم بلکې همت ته يې ګورم.
مدارج السالکين ۳ج ـ۳صفحه

---

(1) تفسير القران الكريم لشيخ ابي ذكريا عبدالسلام رحمه الله ۱٦۴۱مخ
(2) صحيح البخاري (۸/ ۸۸)

ابو علی الدقاق ویلي : وخت هغه دی چې ته پکې یې، که دنیا کې یې ستا وخت دنیا ده، که اخرت کې یې ستا وخت اخرت دی، که خوشحالی کې یې ستا وخت خوشحالي ده، که غم او خپګان کې یې ستا وخت خپګان دی. [مدارج السالکین ۹۷ص]

له حال نه ګټه واخله، پر ماضي او مستقبل بوختېدل دې حاضر وخت ضایع کوي او په حقیقت کې ټول وختونه ستا له لاسه وځي.

م.غ فاروقي

یو شمېر عالمان بیا پر دې نظر دي چې عقلمند مومن ته په کار دي چې د الله تعالی په طریقو او پرېکړو کې غور وکړي، خپل ځان او هم کائنات وڅاري، ماضي به له هر څه سره نه هېروي، څکه ستا په حاضر وخت ستر اغېز د نېکیانو او بدیانو پروت دی، نېکیانې، نېکیانې زېږوي او ګناهونه نور ګناهونه زېږوي، ویښ او هوښیار مومن به پر ټول ځواک د وخت ساتنه کوي. [مدارج السالکین ۳ج- ۹۷ص]

## دوه سترې خبرې

د ایمان، تقوی، د علم سمبول او د امت ستر خیرخواه امام شافعي رحمه الله ویلي : له ډېرو صوفیانو او سپېڅلو خلکو سره مې ناسته او ملګرتیا وکړه، له هغوی څخه مې دوه سترې او ګټورې خبرې زده کړې هغه دا چې ویل به یې : وخت توره ده که دې پرېکړ او که نه نو تا پرېکوي او نفس دې که پر حق مشغول نه کړ، تا پر باطل مشغولوي.

مدارج السالکین ۳ج- ۹۷ص

وخت پر داسې مينه وپالئ:
جنيد رحمه الله ويلي: يوه ورځ د مشهور صوفي سری سقطي رحمه الله څنګ ته ورغلم، ورته مې وويل : صاحبه !
څنګه مو سبا کړ؟!
هغه په داسې رنګين او خيالي شعر ځواب راکړ :
مالپاره په شپه او ورځ کې څه نه شته ـ هيڅ پروا نه لرم چې شپه اوږده شوه او که لنډه.
بيا يې وويل : ستاسو له رب سره شپه او ورځ نشته.
يانې اشاره يې دې ته وه چې زه پر وختونو نه خبرېږم بلکې زه له هغه ذات سره يم چې شپه او ورځ اندازه کوي. [مدارج السالکين ۳ج- ۹۹ص]

نن ورځ له تا څخه د ذرې په اندازه نېک عمل او نېکي قبلېدی شي،مګر سبا ورځ که ټوله ځمکه له سروزرو څخه ډکه کړې او وړاندې کوې يې ، نو له تا څخه نه قبلېږي. [ژباړه]

ابو درداء رضی الله عنه به ويل: زه پر خپل ځان د قيامت په ورځ له دې خبرې ډېر وېرېږم چې راته وويل شي :
ابو درداء! علم دې تر لاسه کړی و او په خپل علم دې څنګه عمل کړی؟
هغه به ويل : که چېرې تاسو پر هغه څه پوه شئ چې له مرګ څخه وروسته ورسره مخامخ کېږئ، نو په خوند به ډوډۍ ونه خورئ او نه به په خوند څه وڅکئ او نه به هغه کور ته ننوزئ چې تاسو په کې استراحت او دمه کېږئ، دشتو او مېرو ته به ووځئ، خپلې سينې به

وهئ او پر خپلو خانونو به ژړا کوئ، کاش چې زه ونه وای چې پرې کېدلی او خوړل کېدلی.

که غواړې چې نېکمرغه شې، ژوند وکړه او ددې پنځه قاعدو پاملرنه وکړه:

- څوک چې د الله لپاره څه شی پرېدي، الله به ورته له هغه غوره بدله ورکړي.
- ته الله ته ځان وسپاره څنګه چې ستا زړه غواړي له هاغې نه اوچتې درجې او بدلې به درکړي چې ته يې غواړې.
- نږدې ده چې تاسو به يو شی بد ګڼئ، هغه به تاسو لپاره غوره وي.
- پر هغه څه چې د الله په لاس کې دي ډېر باوري شه په نسبت سره هغه څه ته چې ستا په لاس کې دي.
- څوک چې د خپل ژوند اهم کار د الله او د هغه رضا وګڼي الله تعالی به ده ته له هر څه نه بخښنه وکړي.

نوم: محمد د مور نوم: امنه

د خدمت سابقه، شپونکی، بيا سوداګر، بيا خاتم الانبياء و المرسلين.

دا د وخت پړاوونه دي چې وخت ګرانبيه کړې الله تا ګرانبيه کوي.

د دنيا هر څيز رحلت کوي او بيا نه راګرځي، مګر دعا له امبد سره رحلت کوي او له ډاليو او له ورکړو سره راګرځي. [زباړه]

ته پر خپل ځان دروازه دې لپاره بندوې چې د الله نافرماني وکړې، خو؛ هغه مهربان ذات ستا لپاره د دروازې لاندې اکسیجن ددې لپاره رالېږي چې ته نفس او ساه واخلې.

رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي : کله چې د شپې وروستی دریمه برخه پاتې شي، الله تعالی د دنیا اسمان ته راکوزېږي او وايي :
((څوک چې له ما دعا وغواړي زه به يې دعا قبوله کړم، څوک چې له ما څه غواړي نو وربه يې کړم، څوک چې له ما بخښنه وغواړي بخښنه به ورته وکړم، خو دا تر سبا پورې وي)). [الحدیث النبوي]

عمر بن الخطاب رضی الله عنه ویلي : د الله لور ته په خاموشی کې دعوت کوونکي شئ، چا ورته وویل : دا څنګه؟
هغه وویل : په اخلاقو دعوت وکړئ! [ژباړه]

رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي : دوه نعمتونه دي چې ډېری خلکو پکې تاوان کړی، صحت او وزګارتیا. [صحیح البخاري]

وخت د مینې سوغات غواړي. [م.غ فاروقي]

نن ورځ ستا لپاره ستره الهي ډالی ده. [م.غ فاروقي]

## د وخت دوه ستري ځانګې

هو؛ ورځ او شپه هغه ستر دوه ارزښتونه دي چې الله تعالی دواړه پر سوګند ګرانبيه او ارزښتمن کړي، د سپېڅلي کتاب پاڼې پر دې شاهدې او رنګينې دي چې الله تعالی په بيا بيا په ورځ او شپه سوګند کړی، اوس نو تا پورې اړه لري چې د وخت له دې ځانګو څومره مېوه ترلاسه کوې. [محمدغني فاروقي]

## د زمانې کتاب

الله تعالی پر زمانه سوګند ياد کړی دی دا ځکه چې زمانې په خپلې غېږ کې د انبياء کرام ژوند او د هغوی د ژوند نا اشنا کيسې او حالتونه ساتلي، د هغوی د قومونو انکار پر هغوی د بېلابېلو عذابونو راتلل او د مومنانو نجات د زمانې په کتاب کې درج دي.

اوس نو ګرانه! وخت له تا مينه غواړي چې د زمانې په اوربل کې د سپېڅليو يادونو ګلونه وتومبې. [م.غ فاروقي]

## د خيالونو انځورګر

د خيالونو انځورګر د خپل ژوندانه د شوخو، مستو او سرشارو شېبو د کاروان ځاروان ته د سوال ځولی داسې غوړوي: ګوندې وخت يې د زړه غږ ته په مينه هر کلی ووايي...

نه غواړم خوندونه درنه نه غواړم      ای د ځوانۍ عمره خو؛ تېرېږه مه

م.غ فاروقي

## خوږ سمندر

ستر اسلامي مفسر خطيب شربيني رحمه الله ويلي : قران کريم د خوږ سمندر په څېر دی، څوک ترېنه په چونګونو او څوک ترې په لپو کې اوبه را اخلي، مګر سمندر ته کوم زيان نه رسېږي.

اوس نو تا پورې اړه لري چې د وخت په دې زرين پړاو کې د سمندر له تل نه مرغلرې ترلاسه کوې او که د خوړ اوبو نه يې ليې راډکوې.

زباړه

## د خلکو چوپړ

علامه ابن قيم رحمه الله ويلي : د خلکو د اړتياو په پوره کولو کې ستر خوند دی يوازې هغه خلک پرې پوهېږي چې ددې تجربه يې کړې وي.

نو؛ بيړه وکړه! دا کار کوچنی مه ګڼه، ځکه ته نه پوهېږې چې کومه نيکي به تا جنت ته ننباسي.

هوکی؛ ګرانه!

وخت نه ګټه واخله د نورو په چوپړ کې سرداري ده، پر وطن مين شاعر ملنګ جان هم ويلي :

اول ځان د قام خادم کړه، بيا هله د قام سردار شه!

يوسف عليه السلام ته په زندان کې وويل شو: إِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ.

ژباړه: يقيناً مونږه تا وينو له ښه کارکوونکو څخه.

او کله چې د مصر په خزانو واکمن شو نو هغه مهال ورته وويل شو:

إِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ.

ژباړه: يقيناً مونږه تا وينو له ښايسته کارکوونکو څخه.

سپېڅلی معدن او کان د حالتونو او پوستونو (منصبونو) پر بدلون بدلون نه مومي، نو احسان کوونکی شه که څه هم احسان سره نه مخامخ کېږې، هو؛ دا د خلکو لپاره نه بلکې ددې له امله چې : (إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ).

ژباړه: بېشکه الله تعالی نېکو کاران خوښوي. [عوض القرني]

شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله ویلي: ما د الله تعالی د کتاب په خبر بل څیز نه دی لیدلی چې د عقل او روح لپاره غوره غذا وي، د بدن ساتونکی وي او د نېکمرغی ضامن وي.

## د قران مینه واله!

وخت دې په قراني مینه ونازوه، سترګې دې د الله ښکلي کتاب ته ځیرې کړه او د قران کریم د نوراني څراغ په نازکو پلوشو یې روښانه کړه، څکه ژوند د وخت په ملتیا په ډېرې چټکی سره خپل یون پیل کړی او د انتظار تمه ترې هېڅ نه کېږي.

سفیان ثوري رحمه الله ویلي : کله چې د صدقې او عمل صالح هوډ وکړې نو په کولو بیړه وکړه مخکې له دې څخه چې شیطان ستا او د عمل ترمنځ پرده او دېوال جوړ شي. [ژباړه]

## د مینې ژبه

علامه ابن قیم رحمه الله ویلي: څوک چې ژبه د الله له ذکر څخه وچه کړي نو په باطلو او بې فایدې ویناوو به یې تازه ساتي.
پام! چې ژبه دې د دوزخ د اور لپاره لایقه نه کړې، هڅه وکړه چې خپله خوږه ژبه دې د الله تعالی په یاد لمده وساتې چې پایله کې یوه ښکلې جنتي ژبه ولرې. [ژباړه]

## د یارانو لیکلړ

بیړه وکړه خپلوان دې په خپلوی، دوستان او یاران دې په مینه وپاله!
وخت د اوبو په څېر روان دی د خپلوانو او یارانو په لیکلړ کې مې چې تېر کال کوم کسان لرل، نن د هغوی نومونه د ژوندیو له لیکلړه غورځېدلي او اوس د زمکې په تل کې پراته دي .

عامر بن عبدالقیس ته ملګري ورغلل ورته یې وویل : عامره!
څو شیبې له موږ سره خبرې اترې او مرکه وکړه!
عامر ورته وویل : تاسو لمر ودروئ، بیا به زه له تاسو سره مرکه وکړم!
ملګرو یې وویل : لمر خو موږ نه شو درولی!
عامر وویل : چې تاسو لمر نه شئ درولی، زه وخت نه شم درولی، وخت له ما څخه روان دی او نه ایساربږي.

## یو ساعت کې ۷۲۰۰۰ نېکی وګټه!

ګرانه! په یوه ثانیه کې دوه ځلې (الحمدلله) ویلی شې؟!
چې یوه دقیقه کې (۱۲۰) ځلې کېږي او چې یو ساعت پوره (سبحان الله، الحمدلله، لا اله الا الله او یا د الله اکبر کلمه ووایې، نو پوره (۷۲۰۰۰) ځلې به دې د خپلې خوښې کلمه ویلې وي، یوه نېکی یو پر لس ده نو په یو ساعت کې به دې (۷۲۰۰۰) نېکۍ ګټلې وي.
بیړه وکړه وخت دې پر الهي ذکر سینګار کړه! [م.غ فاروقي]

## د وخت مېوه لرونکې څانګه؟!

د انسان عمر ټول امانت دی د امانت په اړه قانون دادی چې پوښتنه یې کېږي او ضایع کوونکی یې د قراني، نبوي، انساني او اخلاقي قوانینو پر بنسټ مجازات کېږي د ځوانۍ مست او هڅاند پړاو هم د وخت له څپانده سمندر نه سرچینه اخلي، دا پړاو هم په ډېرې چټکۍ سره پر مخ ځي مګر له انسان سره یې په اړه محاسبه یقیني ده.

عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا تَزُولُ قَدِمَا عَبْدٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُسْأَلَ عَنْ أَرْبَعِ خِصَالٍ: عَنْ عُمُرِهِ فِيمَا أَفْنَاهُ؟ وَعَنْ شَبَابِهِ فِيمَا أَبْلَاهُ؟ وَعَنْ مَالِهِ.[1]

معاذ بن جبل رضی الله عنه د حدیث راوي دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي: د قیامت په ورځ به تر هغې د بنده پښې له خپله ځایه

[1] المعجم الکبیر للطبراني (۲۰/ ۶۰.)

ونه خوځېږي تر دې چې د څلورو څيزونو په اړه ترېنه پوښتنه ونه شي، د عمر په اړه چې په څه کې يې تېر کړی او د ځوانی په اړه چې په څه کې يې زړه کړې؟
د مال په اړه چې له کومه ځايه يې ګټلی او په څه کې يې لګولی؟
او د علم په اړه چې څه عمل يې پرې کړی؟
ګرانه زلمیه! پام دې وي چې ګړاوونه او ناخوالې دې د عمر د مېوه لرونکې څانګې ځوانی څخه غافل او بې خبره نه کړې.
ددې څانګې له مېوو نه ګټه پورته کړه مينه ورسره وکړه او ددې پر قيمتي انرژی د بوډاتوب وختونو ته ايمانی او عملي ورتيا سپما کړه چې د وخت له دې زريني څانګې سره د مينې په وسيله هم په دنيا او هم په اخرت کې سرخرويه او د هسکې ايماني شملې خاوند شې.

## نازولې نېکمرغي

د وخت هره شېبه د خپلې غېږې په زانګو کې نېکمرغي زنګوي، ته هم د نېکمرغی لېوال او مينه وال يې، بېړه وکړه د هرې شېبې درناوی وکړه چې په نازولې نېکمرغی دې ونازوي. [م.غ فاروقي]

## د شپې غږيز پيغام

هره شپه د راتلو پرمهال غږ کوي: (ځومره مو چې وس وي، بېړه وکړئ، په ما کې د خير کارونه ترسره کړئ، ځکه زه بيا د قيامت تر ورځې پورې تاسې ته نه راګرځم.) [1]
ګرانو لوستونکو! د شپې غږيز پيغام ته په پام هڅه وکړئ، د شپې ګټو ارزښتونو ته پاملرنه وکړئ.

---

۱- التذکره فی احوال الموتی واموراالآخرة، مخ:۱٦۸.

د شپې په خاموشۍ کې داسې نېکې کړنې ترسره کړئ، چې پر کولو يې خوښ او خوشاله اوسئ. هرې شپې ته د ارزښت او قدر په سترګه وګورئ، د شپې تروږمې مو ذ ايمان او عمل صالح په رڼا روښانه کړئ، چې د قبر شپه مو هم روښانه شي.

هو؛ دا حقيقت دی، که شپه غنيمت ونه ګڼو، د وخت د شپېو درناوی يې ونه کړو، طبيعي ده، چې ډېر ژر به مو دلاسه ورکړي وي، د وخت يوه داسې برخه به مو له لاسه وتلې وي، چې په خاموشه غېږه کې يې هر اړخيزه ښودنه او روزنه ترلاسه کولای شو.

د ژوند مينه واله!

که له ژوند سره دې مينې ته زړه کېږي نو له وخت سره مينه وکړه ځکه حقيقت کې ژوند د وخت مېوه ده.

امام شهيد حسن البناء رحمه الله ويلي: وخت ژوند دی ځکه د انسان ژوند هغه وخت او شېبې دي چې د زوکړې له ورځې څخه يې د مړينې تر نېټې پوره کوي. [دوخت ارزښت له کتابه]

عمر بن عبدالعزيز رحمه الله ويلي: شپه او ورځ په تا کې کار کول غواړي ته بيړه وکړه دې دواړو کې کار وکړه! [ژباړه]

د انسان د نېکمرغۍ نښه داده چې د شپې او ورځې په غېږه کې داسې هنرونه، کاري وړتياوې او علمي نوښتونه زده کړي، شپه او ورځ د کار او زيار په رڼا روښانه کړي چې پايله کې د وخت ددې ښکلې جوړې (شپې او ورځې) په چوپړ د وخت او زماني تاريخي اتل شي.

## له وخت سره د مینې د قافلې سرلاري شه!

اسلامي عالمان سپارښتنه کوي: هغه وګړه چې نن ورځ دې له پرون ښخه ډېره ښکلې او ارزښتمنه وي او سبا ورځ دې له نن ښخه لا ډېره ګټوره وي.

هوکې زلمیه! د نن ورځې ارزښتونه وپاله چې د تېرې ورځې ارمان ونه کړې، هو؛ که ژوند درسره یارانه وکړه سبا ورځ دې په هومره کاري ښکلا سینګاره کړه چې نورو لپاره له وخت سره د مینې د قافلې سرلاري شې. [م.غ فاروقي]

## د لمر طلایي څادر

د وخت هره شېبه لکه د مازیګر د لمر په څېر ده، د مازیګر لمر په ډېرې بیړې سره د کائناتو له رنګینې نړۍ نه خپل طلایي څادر راټولوي او د خپلې سجدې ځای ته ځان رسوي، یوازې هوښیار او نېکمرغه خلك له دې قیمتي شېبو ګټه پورته کوي او د وخت ګران بیه شتمني د غفلت په سمندر نه لاهو کوي. [م.غ فاروقي]

الله تعالی وایي :فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ...

ژباړه: پس مخکې شئ له یو بل نه نېکو عملونو ته.

دا ستر الهي پیغام انسان ته د همت او سیالۍ دنده سپاري، هغوی چې له وخت سره مینه لري په روا چارو کې له نورو سره سیالي کوي، سیالي خپلې موخې ته د رسېدو تر ټولو لنډه، غوره او رسېدلې لاره ده، سیالي انسان د کم همتو له ډلې ښخه جلا کوي.

امام ابن جوزي رحمه الله ويلي:

كه غواړې چې پر ځان د افتونو، غمونو او كړاونو حالت ته بدلون وركړې نو د گناه هغه حالت ته بدلون وركړه كوم كې چې ته اخته يې.

ژباړه

عالمان وايي :

د گناه خوند له منځه ځي او گناه يې پاتې كېږي او د طاعت مشقت او كړاو له منځه ځي او ثواب يې پاتې كېږي.

د انسان د ژوند ورځې د گلونو گلدستې ته ورته دي كله چې د ژوند يوه ورځ پر ځان د مازيگر د طلايي لمر شال راخور وي او په ورو ورو تېرېږي داسې ده لكه د گلدستې نه چې يو ښكلى گل جدا كوې او لكه څنگه چې د گل په جدا كولو د گلدستې يو اړخ كمېږي همداسې د ژوند د يوې ورځې په تېرېدو د ژوند غونچه نيمگړې كېږي.

م.غ فاروقي

## الله تعالى يې ياد نمانځي!

وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَامًا.

ژباړه: او دا هغه خلك دي چې شپه روڼوي (شوگير كوي) لپاره د رب خپل، سجده كوونكي او ولاړ.

ريس المفسرين عبدالله بن عباس رضى الله عنه ويلي: څوك چې د ماسخوتن د لمانځه وروسته دوه يا له دوو ډېر ركعاته لمونځ وكړي گوا چې ټوله شپه يې د الله تعالى لپاره په ولاړه، ركوع او سجدو كې تېره كړه. [الدكتور محمدالعريفي]

وخت ستا لپاره دی ستا ذکاوت او ځيرکتيا داده چې شپه او ورځ د الهي سپېڅلي عبادت پر پوښاک وپوښې او خپل پالونکي ته د عبادت په قيام، رکوع او سجدو کې ځان ورسوي.

د کائناتو خالق هم د هغوی ياد نمانځي چې شپې پر عبادت، ولاړه او سجدو روڼوي او ځان د زړه له سپېڅلي محل نه الله تعالی سره د لمانځه په ليکه وصلوي.

## طلايي مازيگری درنه مينه غواړي!

گرانه! په ياد دې وي چې ستا د نن ورځې پای مازيگری دی!

هو؛ مازيگر هغه گرانبيه وخت دی چې د کائناتو خالق ورته د (والعصر) قراني تاج ور په سر کړی، دومره يې ددې ښېړني وخت قدر گران کړی چې سوگند يې پرې ياد کړی، د الله تعالی سنت (طريقه) داده چې کله بنده گانو ته د يو ځيز ارزښت ښکاره کوي او د هغه ځيز ارزښت ته يې ځير کوي نو سوگند پرې يادوي، پر همدې بنسټ الله تعالی د مازيگر په وخت سوگند کړی چې دا د ورځې وروستی وخت دی، همدا راز د سوداگرو او مزدورانو د گټې او تاوان وخت دی.

نبی صلی الله عليه وسلم ددې وخت ارزښت بيا داسې ثابت او انځور کړی : (له چا نه چې د مازيگر لمونځ پاتې شو گوا چې اهل، عيال او مال يې تاواني شو.)

همدارنگه يو بل صحيح حديث کې اشاره ده چې ددې امت د ژوند مثال په شان د وخت د مازيگر دی، تر ماښام پورې چې په عمل ددوی سره ده، ۵ قيراطونه اجر او بدله ورکول کېږي.

احسن الکلام ۹ج- ۴۰۴ ص

د رحمت نبي صلی الله عليه وسلم په هغه ورځ پر مشرکانو ډېر په غوسه و چې د هغوی له امله ترېنه د مازيګر لمونځ قضا شو، ويې ويل : الله تعالی دې د کافرانو کورونه او قبرونه له اوره ډک کړي چې له موږ يې د مازيګر لمونځ قضا کړ.

## د صدقې بانک

هغه ځانګړی بانک چې په دنيا او اخرت کې ځانګې لري، هو؛ د (صدقې بانک) چې خلک پکې دنيا کې امانتونه ږدي او اخرت کې به يې ترېنه را اخلي. [احمدعيسی المعصراوي]

ګرانه! ته هم د خپلو مالي حسابونو او شتمنيو لپاره دا بانک غوره کړه چې هم دې اصل مال وساتل شي او هم ترې بې حسابه ګټې ترلاسه کړې.

## درې ارمانجن

ګونګی د الله د کتاب د لوستلو هيله لري، کوڼ د اورېدلو ارزو لري او ړوند تل دا ارمان زړه کې لري چې پر سترګو د خلکو او کائناتو ننداره وکړي. [ژباړه]

دوستان او ملګري په اخلاص او مينه پالل له تواضع او کمينی سرچينه اخلي، هغوی چې د مينې او تواضع په ورېښمين پوښاک سينګار او پوښلی وي د وخت له هرې شېبې سره داسې مينه کوي ځنګه چې له خپل ګران ملګري ښخه زړه لاسته راوړلی شي.

محمد بن منکدر وايي : له خپل ملګري خليل بن احمد رحمه الله سره په لاره روان شوم، کله چې د خليل بن احمد رحمه الله راته پام شو

هغه هم خپله خپلې له پښې وويسته په لاس کې يې واچوله او راسره پښې ابله روان شو، ماورته وويل : دا څه کوې؟!
راته يې وويل : له تاسره په پښې ابلې کې سيالي او ستا پيروي کوم.

الصفحة الرسمية محمد العريفي (فيس بوك)

ستر ديني عالم او خوږ ژبی ليکوال دکتور عبدالله عايض القرني د قران کريم د انشراح سورت ددې ايت: (فَإِذَا فَرَغْتَ فَٱنصَبْ ۝ وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَٱرْغَب ۝)

په نوراني پلوشو کې خپلې وينا ته داسې ښکلا ورکوي:
دا ايت ددې اجازه نه ورکوي چې وزګار وخت دې بې خايه تېر کړې بلکې قراني سپارښتنه داده چې وزګار وخت مه تېروه.
يا ولوله، يا مطالعه وکړه ،يا عبادت وکړه او يا تسبېحات ووايه.

الدكتور عايض القرني

شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله نه چې کله پوښتنه وشوه، څنګه دې سبا کړ؟
هغه وويل : د دوو سترو نعمتونو په منځ کې، نه پوهېږم چې کوم يو به يې غوره وي.

## د ښکلا ناوې

وَٱلْفَجْرِ ۝

ژباړه: قسم دی پر سهار.
ګرانه !
سبا دی ! هو؛ هغه سبا چې الله تعالی د سوګند ښکلی تاج ورپه سر کړی او ددې وخت ارزښت يې لا نور هم ګرانبيه کړی.

هغه سبا چې مؤذن پکې د توحید پر خوږه نغمه (اذان) خلک لمانځه ته رابولي، بلبلان پکې توحیدي سندرې وايي.

هغه سبا چې پر خپل نوراني ځواک د شپې تور ځادر له ځانه غورځوي او د رڼا د نړیوال ځراغ (لمر) رڼايي کائناتو او مخلوقاتو ته له طلايي ځولۍ ښخه ډالۍ کوي.

هغه سبا چې د شپې او د ورځې ځولی کې د سبا د فرض لمانځه وړاندې دوه رکعاته داسې نبوي سنت لري چې نبي صلی الله علیه وسلم يې له ټولې دنيا او څه چې په دنيا کې دي، غوره بولي.

هغه سبا چې په روښانه شېبو کې يې د اسلام پر فطرت راویښېدل ستر نعمت ښودل شوی، پوهېږم چې د ژوند هرې شېبې سره مینه لرې.

سمه ده! د سبا وخت هم مینې ته اړتیا لري، ژر شه د الله یاد په یاد کړه، لمونځ وکړه او د ژوند د نوې ورځې نوی سبا د عبادت، قران او سنت په پلوشو لا نور هم ډولي او رنګین کړه.

هڅه وکړه دا وخت هم په ډېره بېړه روان دی، ورسره غاړه غړۍ شه، مینه ورسره وکړه، په مینه يې ونازوه چې تا هم په ګرانبیه سوغاتونو وویاړي.

هله ژر شه!

د ژوند د نوې ورځې له مانیز بازاره دې د ایمان او عمل صالح پر ګاڼه جوړه لوپټه پورته کړه او د سبا د ښکلا ناوې ته يې د مینې په پار ورپه سر کړه، چې د وختونو اوسنی او راتلونکی تاریخ دې په خپلې غېږې کې وساتي. [م.غ فاروقي]

د کائناتو نړی پر ځانګړي نظام ولاړه، ښايي ته هم د ژوند، کورنۍ، ښوونځي، پوهنځي، خوراك، څکاك، پوښاك او نورې اړوندې چارې په ترتیب او مهالوېش سنبال کړې. [الدکتور عایض القرني]

## له وخت سره د مینې اشنا!

مینه دې په عمل کې ثابته کړه، ټولې چارې دې د مهالوېش سره سمې عيار او انجام کړه، هم به دې د وخت د ضايع کېدو مخنیوی کړی وي او هم به دې له وخت سره مینه کړې وي. [م.غ فاروقي]

کوم امت چې خپل تاریخ نه لولي خپل راتلونکی نه شي سینګارولی.
الدکتور الراغب السرجاني

هوکی؛ ګرانه! بیره وکړه له همدې شېبې هوډ وکړه چې د خپل دین او ملت سپېڅلی او رنګین تاریخ به لولي او له بریاوو او ناکامیو به یې زده کړه کوې چې پر مټ یې خپل راتلونکي ته د بریا او پرمختګ شمله ور په سر کړې.

## رنګین ژوند

کله چې صحیح مؤمن وموندل شي نو له هغه سره به د بریا او نېکمرغۍ ټول اسباب وموندل شي. [امام حسن البناء رحمه الله]

د ښاغلي امام دا خبره خورا زیاته ارزښتمنه او په ټول پوره ده ځکه اسلام د نېکمرغۍ دین دی، ایمان په دنیوي او اخروي ژوند کې د بریا او پرمختګ کیلي ده، که غواړې چې د بریمن ژوند محل ته ورننوځې، د وخت د ګرانبیه شېبو درناوی وکړه، د ایمان کیلي

راواخله، هو؛ د (لا اله الا الله) هغه کیلي ده خانه سره کړه چې د عمل صالح غاښونه لري او د رنګین ژوند محل ته لګېدلی قلف پرې خلاص کړه، هو؛ د رنګین ژوند. [م.غ فاروقي]

## د ژوند راز

د ژوند ستر راز دا دی چې خپل هدف ته د رسېدلو لاره کې ولګول شي. [دکتور مصطفی محمود رحمه الله]

پر ما ګرانه!

د وخت هره شېبه په مینه وپاله، هو؛ په داسې مینه چې د ژوند هدف ته دې ورسوي، که د وخت هره شېبه د خپل هدف په پلټلو کې تېره کړې او هره شېبه په دې لاره کې خپله مرستیاله او ملاتړې وګڼې، امید دی چې د ژوند ستر راز به دې خپل کړی وي.

## د توحید بېړۍ

د توحید بېړۍ د نوح علیه السلام د بېړۍ په څېر ده، څوک چې پکې سپور شو هغه نجات وموند او څوک چې ترې وروسته پاتې شو هلاک شو. [الدکتور محمد العریفي]

ګرانه زلمیه!

ته په توحید او اسلامي فطرت زېږېدلی یې، ستا د زړګي په حرم کې د (لا اله الا الله) خوږې نغمې ازانګې کوي، د بدن پر ښکلیو غړیو دې د توحید او ایمان پلوشې مستې کوي، نو؛ پام دې وي چې د کفر او شرک تور مخې او شین سترګي داړه ماران دې درنه ایمان غلا نه کړي، د ورځو او شپو د اوړېدلو را اوړېدلو انقلابي بهیر روان دی، ګوره! که د خطر احساس دې وکړ سملاسي د توحید بېړۍ ته وخېژه چې د نجات څښتن شې. [م.غ فاروقي]

## وروستی شېبه!

هره شېبه داسې ژوند وکړه ګوا چې دا ستا د ژوند وروستی شېبه ده.
له ایمان سره ژوند وکړه، په هیله او امېد ژوند وکړه، په مینه ژوند وکړه، له ژوند سره غاړه غړی شه او د خپل ژوند بیه اندازه کړه.
الدکتور ابراهیم الفقي رحمه الله

## د ژوند پاڼه

داسې فکر وکړه چې د مرګ استازی (ملك الموت) دې هره شېبه سر ته ولاړ دی، د ژوند پاڼه دې بدله او شېبه وروسته دې د مرګ پاڼه را اړوي، مېرمن، بچي، خپلوان، یاران، کور او نړی درنه پاتې کېږي، یوازې د عمل یار به دې د سفر ملګری وي که ښه وي او که بد، هځه وکړه چې عمل صالح دې د اوږده سفر ملګری شي. [م.غ فاروقي]
هره شېبه، هره دقیقه، هره ثانیه چې زموږ له عمر نه تېرېږي موږ د عمل صندوق ته نږدې کوي،اخرت ته مو نږدې کوي او له دنیا نه مو لرې کوي. [م.غ فاروقي]
ګرانه!
ته په کائناتو کې ډېر ګرانبیه یې!!
پام چې ارزښت دې له لاسه ورنه کړې. [م.غ فاروقي]

## څلور کورونه

دوه لنډ مهالي : دنیا، قبر
دوه تلپاتې :جنت، دوزخ [ابن قیم رحمه الله]

## نندارتون

دنیا د عملونو صندوق او اخرت یې نندارتون دی.
ګرانه! اوس نو ستا خوښه ده چې ښه یا بد؟
ښایسته یا بدرنګ، سپین او که تور عملونه ننداري ته وړاندې کوې؟!!

محمدغني فاروقي

خوږوالی په درې ځیزونه کې ولټوئ!
لمونځ، ذکر او د قران تلاوت کې، که مو وموند ښه ده او که نه، نو بیا پوه شئ چې دروازه دربانديې تړلې ده.

حسن بصري رحمه الله (مدارج السالكين ٦ج - ٤٧٦ص

## د زړه هینداره

زړه ته داسې زنګ لګېږي څنګه چې اوسپنې، مسو او سپینو زرو ته لګېږي دا زنګ پر الهي ذکر پاکېږي تردې چې د سپینې هینداري په څېر وځلېږي، زړه چې کله ذکر پرېدي زنګ ورته لګېږي او چې ذکر وکړي پاکېږي .
زړه ته د دوو لاملونو له امله زنګ لګېږي: غفلت او ګناه.
ځلا او پاکي یې هم پر دوو ځیزونو کېږي: استغفار او ذکر.

الذكر واثره فی طمانیة القلوب ۴۰۷ ص

زما د زړه محل کې ګران قدره اشنا!
هیله مې داده چې د زړه سپېڅلې هینداره دې د غفلت او ګناه زنګونو ته پرې نه دې، هو؛ ستا د زړګي حرم د توحید، ایمان، قران او سنت د بلېدونکو ډیوو په رڼا ګانو منور او ځلانده دی، اراده دې له هوډ سره ملګرې کړه، ژبه دې د الله تعالی په ذکر لمده او تازه وساته چې د توحیدي نور رڼا د زړه د حرم په دېوالونو خپلې پلوشې خورې کړي او د زړه هینداره د بېلابېلو ګناهونو له زنګونو او داغونو پاکه پاتې شي.

سترګې چې پر خپلو اوښکو کوم محبت ووینځي، هغه سپېڅلې، ښکلې او تلپاتې وي. [جبران خلیل جبران]

هغه هېرېږي چې له تا سره یې خندا شریکه کړې وي مګر هغه هېڅکله نه هېرېږي چې ته یې ژړولی یې. [ج - خلیل جبران]

د انسان د خیال او ادراک تر منځ هومره مسافه ده چې له حنین (زګېروي) پرته یې بل څوک نشي موندلی. [ج - خلیل جبران]

سیلۍ او ږلۍ ګلونه پناه کوي، مګر تخمونه یې له منځه نه شي وړلی.
ج - خلیل جبران

ددې امت د قیام او لوړتیا کیلي د (اقرأ) کلمه ده، دا نه دي شوني چې د (لیک او لوست) پرته دې دا امت لوړ مقام ترلاسه کړي.
الدکتور الراغب السرجاني

## جوړه هېنداري

د کائناتو پالونکي ویلي :

قُل لِّلۡمُؤۡمِنِينَ يَغُضُّواْ مِنۡ أَبۡصَٰرِهِمۡ وَيَحۡفَظُواْ فُرُوجَهُمۡۚ ذَٰلِكَ أَزۡكَىٰ لَهُمۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ خَبِيرُۢ بِمَا يَصۡنَعُونَ ۝٣٠ وَقُل لِّلۡمُؤۡمِنَٰتِ يَغۡضُضۡنَ مِنۡ أَبۡصَٰرِهِنَّ وَيَحۡفَظۡنَ فُرُوجَهُنَّ...

ژباړه: او ووایه مؤمنانو نارینه و ته چې ښکته دې ساتي څیني له نظرونو خپلو نه او بچ دې ساتي عورتونه خپل، دا طریقه پاک ساتونکې ده دوی لپاره، یقیناً الله تعالی خبر دی پر هغو کارونو چې دوی یې کوي.

(٣) او ووايه مؤمنانو ښځينه و ته چې ښكته دې ساتي له نظرونو خپلو نه او بچ دې ساتي عورتونه خپل.

علامه ابن قيم رحمه الله ويلي: الله تعالى سترګې د مخ هېندارې ګرځولي كله چې مومن بنده خپل نظر ښكته ساتي نو زړه يې خپل شهوت او اراده ښكته ساتي او كله چې خپل نظر ازاد كړي نو زړه يې هم خپل شهوت ازاد كړي. [اغاثة الهفان ۱ج ـ ۴۷ مخ]

وخت ګرانبيه خزانه ده، هو؛ داسې خزانه چې راځي، تېرېږي او بيا نه راګرځي. [م.غ فاروقي]
وخت له سرو زرو، سرو ياقوتو او زمردو ډېر ګرانبيه دى مګر موږ يې په ارزښت نه پوهېږو؟!
م.غ فاروقي

له وخت سره مينه، په حقيقت كې له خپل ژوند سره مينه ده.
م.غ فاروقي

امام احمد بن حنبل رحمه الله نه د ځوانۍ د وخت په اړه پوښتنه وشوه: هغه وويل :ځواني مې له يو داسې ځيز سره تشبېه كړې چې لستوني كې اينبى وي او راځخه غورځېدلى وي.
د ځوانانو يوه ډله د سمندر په غاړه ناسته وه، په لاره يو سپين ږيرى را روان و چې د ځوانۍ مسته دوره يې تېره كړې وه او اوس يې ملا د لېندۍ غوندې راماته وه، كله چې د ځوانانو څنګ ته راورسېد، يو

ځوان ترې د ملنډو په ډول وپوښتل: بابا دا قوس (ليندۍ) په څو روپۍ خرڅوې؟
سپين ږيري ورته وويل: بچيه ! كه الله ژوند دركړ دا ليندۍ به بې پيسو ترلاسه كړې. [محمد عبدالرحمن العريفي]

له خپلې كوچنۍ لور نجلا فاروقي مې وپوښتل :
تر ټولو قيمتي څيز څه شی دی؟
ځواب كې يې راته وويل : سره زر!
ما ورته وويل : د جايزې وړ يې ځكه ما غوښتل چې تاته د وخت ارزښت په ګوته كړم ځكه وخت هم لكه سره زر دي.

## پنځه له پنځو وړاندې غنيمت وګڼه

محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم ويلي:

- ځواني له زړښت مخكې.
- صحت له ناروغتيا مخكې.
- شتمني له فقر مخكې.
- ژوند له مرګ مخكې.
- اوزګارتيا مخكې له كار څخه.

هغوی چې د وخت په ارزښت پوه شوي، تاريخ يې د لمر په څېر ځلېږي، سعد بن معاذ رضی الله عنه يوازې شپږ كاله په اسلام كې تېر كړل خو؛ وخت يې په داسې سپېڅلې ګاڼه سينګار كړ چې د مرګ په مهال يې عرش ولړزېده. [م.غ فاروقي]

## خوږه نغمه

د خاتم النبيين صلی الله عليه وسلم خبره څومره ښکلې ده : (( روغتيا له ناروغتيا مخکې غنيمت وګڼه )).

ډېر خلک د توحيد د خوږې نغمې (اذان) په وسيله موږ د لمانځه او نجات لور ته بلل کېږو مګر د بېلابېلو ناروغيو له امله جومات ته ګام نه شو پورته کولی څکه چې د صحت چانس مو له لاسه ورکړی وي.

م.غ فاروقي

ابو هريرة رضی الله عنه دوه کسان وليدل چې يو يې له هغه بل نه لږ کوچنی و، ترې يې وپوښتل : دا سړی دې څه کېږي؟

هغه وويل : پلار مې دی!

ابو هريرة رضی الله عنه ورته وويل : پر نوم يې مه رابوله، ترې مخکې مه ځه او مه ترې مخکې کېنه. [الدکتور محمد العريفي]

## د عمل خوند

حفصه بنت سيرين رحمه الله ځوانانو ته په خطاب کې ويلي:

ای ځوانانو!

د ځوانۍ په مهال له ځانونو ګټه واخلئ څکه ما د عمل خوند په ځوانۍ کې ليدلی. [ژباړه]

د حماد بن سلمة رحمه الله په سيرت کې راغلي: چې هغه د وخت قيمت ته دومره ژمن و، که چېرې حماد ته وويل شي: سبا مړ کېږې عباداتو کې دې زياتوالی راوله!

نو وبه ويل شي چې د حماد مهالوېش ټول په طاعاتو او عباداتو ډک دی، د هغه د اعمالو جدول کې يوه شېبه هم داسې نشته چې عمل

ورته تاکل شوی نه وي، هغه به یا د نبوي حدیثو په بیان، یا مطالعه، یا لمونځ او یا ذکر او تسبیح کې بوخت و. [ژباړه]

د سینې په شاهي ماڼۍ کې واکمن بادشاه (زړګي) ته دې ووایه: د اخلاص، مینې، خواخوږۍ او وفا خواږه سوغاتونه ووېشه څکه چې ژوند ډېر په بیړه روان دی او مرګ هرو مرو راځي. [م.غ فاروقي]

## د وطن مینه!

د وطن مینه له فطرت نه سرچینه اخلي!
پر همدې بنسټ اړینه ده چې وخت سره د مینې په پار خپل وطن هم په مینه ونازوو. [م.غ فاروقي]

د وطن په مینه ښاروونه ودانېږي. [ژباړه]

له وطن سره شرعي مینه په دې مانا ده چې وطن کې د الله تعالی فرائض، احکام او بېلابېل عبادتونه سرته رسېږي. [م.غ فاروقي]

د وطن ساتنه او له وطنوالو سره مینه له وطن سره د مینې په مانا ده.
م.غ فاروقي

د وطن د شتمنیو غصب، غلا او پکې خیانت له وطن سره خیانت دی او له وطن سره د مینې پر ځای ظلم او جفا ده. [م.غ فاروقي]

وطن د مور د غېږې په څېر ده څکه دې کې انسان روزل کېږي، وده کوي او د ښکلي شخصیت خاوند جوړېږي. [م.غ فاروقي]

شر او فساد ته بلنه له وطن سره جفا بلل شوې. [م.غ فاروقي]

## نرگسي مینه!

له وطن سره مینه وکړئ څکه وطن د گلبڼ په څېر دی له وریځو پرې وربښت وربږي، پرخه وربږي، د سحر نسیم یې د گلونو غوټۍ په موسکا راولي، لمر یې گلپاڼو نازکخیالو اننگیو ته سرخي او ښکلا ورکوي، له خوړې څمکې خوندوره غذا ترلاسه کوي او لکه د گلبڼ په څېر خپل مالیار ته نرگسي مینه ناکې وږمې ډالۍ کوي. [م.غ فاروقي]

د وطن مینه ښکلی احساس دی. [م.غ فاروقي]

د وطن مینه فطري غریزه ده. [م.غ فاروقي]

د وطن مینه فطرت دی. [م.غ فاروقي]

د وخت گرانبیه شېبې دې پر داسې ایماني زېور سینگارې کړه چې د مرگ په مهال دې قبر د هرکلي لپاره غېږه پرانیزي. [م.غ فاروقي]

قبر د مؤمن هر کلی کوي، ښایي مؤمن د خپل ایمان ناوې پر داسې ښایسته عملونو سینگار کړې وي چې قبر یې په مینه خپلې غېږې ته ومني. [م.غ فاروقي]

دا هم له وخت سره مينه ده چې څلور په څلور ډوله خوړو ونازوې:

- روح د عبادت پر خوړو.
- عقل د مطالعې پر خوړو.
- بدن د رياضت پر خوړو.
- ګېډه پر خوړو.

الدکتور احمد المعصراوي

## د مخ ننداره!

د هغه چا پر حال تعجب په کار دی چې هغه مخ ته ارزښت ورکوي، کوم چې د مخلوق د نظر محل دی.
او هغه زړه ته نه ګوري او نه ارزښت ورکوي چې د خالق د نظر ځای دی.

پر همدې بنسټ د وخت شېبې مو زړونو سره په مينه ښکلې کړئ، نه دومره چې يوازې د مخونو د ښکلاګانو ښکار شئ. [ژباړه]

ژر شه مينه دې پر ډاليو وپاله، ډالۍ د مينې ځنځيري کړۍ لا زياتې پياوړې کوي او د مينې روح ته ډاډ ورکوي.
د مينې پيغمبر صلی الله عليه وسلم څومره ښکلې سپارښتنه کړې:
يو بل ته ډالۍ ورکړئ، چې مينې مو تاندې شي.
يا دا چې:
د بلونکي بلنه ومنئ، ډالۍ مه ردوئ او مسلمانان مه وهئ.

د مينې لپاره تر ټولو ستره ډالۍ د مينې ليک دی، که نور هېڅ نه لرې دوست ته دې د اخلاص په البوم يا (لفافه) کې د مينې پيغام واستوه هغه ته دا ستره ډالۍ ده. [م.غ فاروقي]

ډالۍ د مينې دلالت کوي، هو؛ د مينې ثبوت دی. [م.غ فاروقي]

کله چې د سبا ملکې بلقيس ته د سليمان عليه السلام ليک ورسېد هغه په بيړه دا پرېکړه وکړه:

وَإِنِّي مُرۡسِلَةٌ إِلَيۡهِم بِهَدِيَّةٖ فَنَاظِرَةُۢ بِمَ يَرۡجِعُ ٱلۡمُرۡسَلُونَ ﴿٣٥﴾

ژباړه: او يقيناً زه لېږونکې يم هغه ته څه هديه (ډالۍ) پس گورم چې په څه ځواب سره راستنېږي، لېږل شوی قاصد.

اهل علم وايي: بلقيس غوښتل، چې د ډالۍ په وسيله د سليمان عليه السلام زړه لاسته راوړي. [ژباړه]

امام حسن بصري رحمه الله ويلي:

ای بني ادم! ته د ورځو مجموعه (ټولگه) يې کله چې ستا يوه ورځ لاړه شي نو له تا نه څه برخه لاړه شي. [ژباړه]

عمر بن عبدالعزيز رحمه الله وايي:

انسانه! شپه او ورځ په تا کې کار کوي نو ته په دوی دواړو کې کار وکړه، ياني په عباداتو او نېکو هڅو او کړنو يې سينگار کړه. [ژباړه]

د لویدیځ عالمان وایي : وخت شمني ده.
اسلامي عالمان وایي : وخت ژوند دی. [ژباړه]

پوهان وايي وخت د تورې په څېر دی که یې پرې نکړې، تا پرې کوي. [ژباړه]
یو عالم نه پوښتنه وشوه : حکمت دې له چانه زده کړ؟
ویې ویل : له ړوند نه .
څکه ړوند تر هغې قدم نه ږدي څو یې چې پر امسا لاره معلومه کړې نه وي. [ژباړه]

## د مینې ډالۍ

ژر شه !
دوست ته دې تر ټولو ښکلې، خوږه او گرانبیه ډالۍ واستوه!
پوهېږې!
دا ډالۍ به څه وي؟
هو؛ په مینه او دوستۍ کې رښتینولي ده. [م.غ فاروقي]

ښایسته اخلاق اسانه څیز دی:
روښانه تنده او نرمې خبرې. [ابن عمر رضی الله عنه]

د ورځې په رڼا کې هر څوک خپل محبوب د ملاقات او دیدن پر خوږو خوشحالوي له سپوږمۍ نه یې زده کړه چې د شپې په تروږمیو کې خپل مئینان د دیدن په نوراني پلوشو نازوي او پر څلېدونکې څېره، مسکانده تنده او خاموشه ژبه د خپل مئین کیسې او گیلې اوري.

م.غ فاروقي

ګرانه!

پر ماضي مه ژاړه همدومره بس ده چې تېره شوې.

له حال نه ګټه واخله او سبا لپاره متې بډ وهه او تیار شه. [م.غ فاروقي]

## خوږه کلمه

مسکا له تورو پرته خوږه کلمه ده.

خوږه خبره زړونو ته د ننوتلو پاسپورټ دی.

هو؛ ګرانه!

چې د اخلاص او مینې ویزه پرې لګېدلې وي. [م.غ فاروقي]

زړونه لوښي دي، شونډې یې قلفونه دي، ژبې یې کیلګانې دي.

پکار ده چې هر انسان د خپل راز کیلي وساتي. [م.غ فاروقي]

څوک چې ونه خوښوي نو څانګې یې هم خوښوي. [م.غ فاروقي]

کله چې غرور زیات شي خوشحالي زیانمنېږي. [م.غ فاروقي]

پوهان وايي:

د درد دقیقه یو ساعت وي او د خوند یو ساعت د یوې دقیقې په څېر وي.

اوس نو دا اړینه ده چې د درد شېبې وزغمو او د خوند شېبې په مینه ونمانځو، ګټه ترې ترلاسه کړو ځکه ژر تېرېږي. [ژباړه]

ګرانه!

مازیګر دی، د ورځې وروستی وخت دی دوه ساعته وروسته شپه پیلېږي ژر شه د نېکو عملونو بانک کې حساب زیاتول غواړي.

م.غ فاروقي

## د څانښت پر وخت الله سوګند ياد کړی

هو؛ دا روښانه او د لمر په پلوشو رنګين وخت دی د کار د پيل وخت دی، د ورځې پيل دی، د ژوند نوی باب دی، ستا د تاريخ نوی اغاز دی مينه ورسره وکړه او د همت او هوډ په ملاتړ يې ونازوه.

م.غ فاروقي

خيال مې د زړه قبله کې د سکون محراب لټوي. [م.غ فاروقي]

د وخت شيبې راته انتظار نه کوي او د مينه پالو يارانو له غږ اورېدو او ديدن نه بې برخې يم، رښتيا هم ارماني نړی ده. [م.غ فاروقي]

درمضان هره ورځ ستا مبلمنه ده ښه سلوك ورسره وكړه كه چېرې ښه سلوك دې ورسره وكړ ځي او ستاينه به دې كوي او كه بد دې ورسره وكړ هم ځي او بدي به دې بيانوي. [حسن بصري رحمه الله]

انسان کوچنۍ نړی ده. [احسن الکلام ۹ج- ۳۵۸ مخ]

كله چې الله تعالى بنده ته د خير اراده وكړي له وخت نه د ګټې اخيستلو توفيق ورته وركړي او وخت د هغه لپاره په خدمت كې تيار كړي. [ابن قيم رحمه الله]

كال ونه ده، مياشت يې څانګې دي، ورځې يې كوچنۍ څانګې دي،ساعتونه يې پاڼې دي، ساه ګانې يې مېوې دي د چا ساه ګانې چې د الله تعالى په اطاعت كې وي د ونې ميوه يې هم ښايسته او خوږه وي او د چا ساه ګانې چې په ګناه كې وي نو د ونې مېوه يې د مړغونې

په خبر ترخه، بې خونده او بد بويه وي، بدله به د قيامت په ورځ معلومېږي د بدلې په مهال به د مېوو خوږوالی او تريخوالی معلوم شي.
ابن قيم رحمه الله

روژه په اسلامي نړۍ کې د مسلمانانو د يووالي يوازينی سمبول دی.
م.غ فاروقي

هڅه وکړه له وخت نه ګټه پورته کړه د رمضان ګرانبيه ورځې شپې د قران په تلاوت ښکلې کړه، امام شافعي رحمه الله به د رمضان مياشت کې ۶۰ ختمونه کول ۳۰ د ورځې او ۳۰ د شپې.
حافظ ابن حجر رحمه الله

رمضان د قران او د الله تعالی په لاره کې د مال لګولو مياشت ده.
امام زهري رحمه الله
همدې اصل ته په پام بيړه وکړه رمضان ته د قران او انفاق ګاڼه ورتر غاړې کړه.

سلفو به د روژې مياشت کې دوو عملونو ته ډېره پاملرنه کوله:
د قران کريم تلاوت او د الله تعالی په لاره کې مال لګولو ته.
امام شافعي رحمه الله

د زماني سبا محمدمصطفی صلی الله عليه وسلم ويلي: د رمضان په هره شپه کې ډېری انسانان د دوزخ له اوره ازادي ترلاسه کوي.

د چا چې نن د پرون په څېر وي هغه په زيان کې دی.

سليمان داراني رحمه الله

کله چې الله ته سجده کوې په خپلو رازونو يې خبر کړه.

الله سره د سترګو په اوښکو مناجات کوه، هغه د زړه مالک دی.

مه وايه له کومه ځايه يې پيل کړم طاعت د الله پيل دی.

مه وايه زما لاره کومه ده؟
شريعت د الله لاره او هدايت دی.

مه وايه زما نعمتونه چېرې دي؟
جنت بس دی.

مه وايه بيا به يې پيل کوم؟
ډېر ځلې تر سبا وړاندې ژوند ته د پای ټکی کېښودل شي. [ژباړه]

**د پېښو بنسټ**

د ټولو پېښو بنسټ چې انسان ته رسېږي نظر دی.
نظر خطر زېږوي، خطر فکر زېږوي، فکر شهوت زېږوي، شهوت اراده زېږوي، اراده پياوړې کېږي، بيا پر پياوړي هوډ بدلېږي که کوم ستر خنډ مخې ته رانشي کار هرومرو واقع کېږي، د همدې له امله ويل شوي چې د سترګو ښکته ساتل د هغه درد نه اسانه دي چې له نظره وروسته پيداکېږي. [ابن قيم رحمه الله (الجواب الکافي)]

## له زړه سره دوه رکعته لمونځ کول

دوه رکعته له فکر، خشوع او خضوع سره ادا کول، د هغې ټولې شپې له ولاړې نه غوره دي چې له زړه څخه نه وي.[ابن عباس رضی الله عنهما]

## اعتبار

د پایلو بشپړېدا ته اعتبار دی، نه د پیل نیمګړتیا ته.

شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله.

## د الله رحمت

په هغو ورځو شپو کې دې ښه وکړه چې لا پاتې دي الله تعالی به درته د ماضي ګناهونه وبخښي، پاتې ورځې شپې غنیمت وګڼه ځکه ته څه پوهېږې چې د الله رحمت به کله مومې؟. [حسن بصري رحمه الله]

## اعتکاف

تعجب دی مسلمانانو ته، چې اعتکاف پرېږدي سره له دې چې نبي علیه الصلاة والسلام له هغه مهال راهیسې نه دی پرېښی کله چې مدینې ته راغی، آن تر مرګه یې اعتکاف کاوه. [امام زهري رحمه الله]

یو ساعت د الله ذکر اویا مجلسونو لپاره کفاره ده.

عطاء بن ابي رباح رحمه الله

## د وخت ګرانبیه ګانه!

محمد صلی الله علیه وسلم ویلي:

څوک چې دا کلمه لس ځلې ووايي، الله تعالی ورته څلوېښت لکه نېکیانې لیکي.

(لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَاحِدًا أَحَدًا صَمَدًا لَمْ يَتَّخِذْ صَاحِبَةً وَلَا وَلَدًا وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ)[1]

## د خوب خاطره

د رمضان په ۲۴ شپه د شپې دوه نیمې بجې مې خوب لیده:

چې یو مسجد کې د ماښام د لمانځه وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم خلکو ته دین بیانوي، زه هم د دې خلکو ګنه ګوڼه کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم خبرو ته ولاړ یم د دې شېبو په جریان کې یو غټه مچی زما مخ ته په قهر او مسلسل ډول تاوېږي راتاوېږي زه پر دې خفه یم چې دا مچی زما مزاحمت کوي او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته شکایت وکړم، هغه له مچی نه وپوښتي، ولې دا ځوروې؟

مچی په خپله ژبه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ووايي: دده مزاحمت ځکه کوم چې ده نیم ساعت زما وخت ضایع کړی، انتقام ترې اخلم!

رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته ووايي: انتقام ته یې اوس اماده یې که بل وخت؟

---

[1] مسند أحمد ط الرسالة ۲۸/۱۵۱

زه ورته ووایم : سمه ده د سبا لمانځه وروسته دې راشي چې څه ډول انتقام او بدله اخلي وادې یې اخلي.

اوس نو زه انتظار باسم چې هغه مچی به له ما نه د وخت د ضایع کېدلو بدله کې څه ډول انتقام اخلي؟!

او له دې خوبه مې دا زده کړ چې باید د هېڅا وخت ضایع نه کړم، څکه دا ستر تاوان دی.

د لیکنې وخت : ۱۸/ ۴/ ۱۳۹۴ـ ۳بجې د چرېانګې وخت

## د جنت لار

شرعي علم د جنت لاره ده!

هڅه وکړه په همدې لاره د جنت بازار ته لاړ شه، د علم نتیجه، خوږه مېوه او تل پاتې نېکمرغي ترلاسه کړه. [م.غ فاروقي]

## د مینې ازموینه!

د مینې یو نوم اختر دی، هو؛ اختر د مینې ازموینه ده، د مینې لوبغاړي پکې اساني سره ازمویل کېږي. [م.غ فاروقي]

رحمت د قانون جوهر دی، قانون یوازې د سرکشانو لپاره سختي ټاکي.
شکسپیر

مور نورو ته د وینو د تویولو درسونه ورکوو کله چې درسونه یاد کړي، بیا پر همدا مور تجربې کوي. [شکسپیر]

## ښکلې وږمې!

د بلبل په خبر د اغزیو خطرونه پر ځان ومنه، سحر وخته بیدار شه، بیا به نو د ګل ځنګ ته ورسېږې او هم به یې له ښکیلو وږمو برخمن شې.
م.غ فاروقي

## خپلې څومره نېکۍ دې نورو ته ډالۍ کړي؟

وايي چې حسن بصري رحمه الله ته یو سړي وویل: پلانکي سړي ستا غیبت کاوه، حسن بصري رحمه الله هغه کس ته له تازه خرماو نه ډک یو لوښی واستوه، ورته یې وویل: خبر شوی یم چې خپلې نېکۍ دې ماته ډالۍ کړي، ما غوښتل د هغې مکافات او بدله درکړم، هیله ده زما عذر ومنې ځکه زه په بشپړه توګه ددې وړتیا نه لرم چې ستا بدله پوره کړم. [تسنية الغافلين ١ج/ ١٦۴ مخ]

## پیاوړی پوځ

ربښتیني زړونه او نېکې دعاګانې هغه پوځ دی چې هېڅکله هم نه کمزوری کېږي. [شيخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله/ مجموع الفتاوی٢٨ج- ٦۴۴ مخ]

هو؛ ګرانه!

هځه وکړه زړه دې ربښتینی کړه او دعا دې د اخلاص پر ګاڼه وپسوله چې د پیاوړي پوځ خاوند شې.

### بده خاتمه

سفیان ثوري رحمه الله یوه شپه تر سهاره وژړل، چا ترې پوښتنه وکړه: دا ټول مو د ګناه له وېرې وکړ؟

ثوري د بوسو يو ډکی را پورته کړ ويې ويل : ګناهونه راته له دې نه هم سپک ښکاري، مګر زه د بدې خاتمې له وېرې ژاړم. [زباړه]

ابن قيم رحمه الله وايي دا ستره پوهه ده چې سړی له دې وېرېږي چې ګناهونه يې د مرګ په وخت کې وشرموي چې نتيجه کې دده او ښې خاتمې ترمنځ پرده جوړه شي. [الدآ والدوأ ۳۹۰ مخ]

## الحمدلله!

نن شپه د ډېرو د ژوند مانۍ رنګې او د قبر خونې ته سلامي شو، د ايمان له جوړې سره ستا نوی سحر د خوشحالۍ زېری دی په مينه الحمدلله ووايه. [م.غ فاروقي]

## د عمر فاروق رضی الله عنه ژړا

عمر فاروق رضی الله عنه د مرګ په وخت کې وژړل ، چا ترې د ژړا د لامل پوښتنه وکړه.

امير المومنين رضی الله عنه ووېل : له دې وېرې ژاړم، کېدای شي داسې ګناه مې کړې وي چې ما وړه ګڼلې وي او هغه د الله تعالی په نزد ستره وي. [ژباړه]

## خاموشه ښکلا

د شپې ياد۹۲ځلې په بېلابېلو تعبيرونو قران کې راغلی، شپه وخت دی. ګرانه!

د خوب جانانه غېږه کله کله پرېده او د شپې د خاموشې ښکلا نه د بريا خواږه د ژوند ناوې ته ډالۍ کوه. [م.غ فاروقي]

## د ماضي دفتر

د ماضي يادونه زړه سېزي، زړه دې د ماضي پر خيالي اورونو مه سېزه، ماضي د ماضي دفتر ته وسپاره د حال له نويو شېبو ګټه پورته کړه څکه څو شېبې وروسته حال هم د ماضي دفتر ته ورځي. [م.غ فاروقي]

## د اخرت وصال

دنيا! د هرې ورځې په تېرېدو د بېلتون خبر رالېږي، زه ساده يم، نه پوهېږم بيا هم د پتنګ په څېر ترې ګرچاپېره تاوېږم او لنډ مهالې مينې مې له زړه نه د اخرت تلپاتې وصال هېر کړي. [م.غ فاروقي]

## ګلابي شال

د کائناتو نظام ته غاړه کېده، لمر شه يا يې هم له لمره زده کړه!
لمر هر مازيګر د تورې شپې له لاسه خپل کور ته ورستنېږي، مګر سبا سحر د هيلو له نړۍ سره بيا راپورته کېږي، د ورځې رخسار ته ښکلا ورکوي او د ناوې په څېر يې پر ګلابي شال نازوي. [م.غ فاروقي]

## زما نوم جان نه دی!؟

هو؛ روح يې باله، جان يې باله، ايمان يې باله، د زړه سکون او ارام يې باله، يرغلګرو يې چې کله د زړه هېواد د بېلتون د پوځيانو پر مټ ونيو، کالبوت يې د جان! جان! غږونه کول.
روح يې ځواب ورکړ: زما نوم جان نه دی. [م.غ فاروقي]

## د مينې کور

په دروازه يې ليکلي و: (د مينې کور!)
زړه، زړه نا زړه ورننوت، پوښتنه يې وکړه: مينه چېرې ده؟
ورته وويل شو: وبخښئ! کور د مينې دی، مګر اوس پکې کرکه اوسېږي. [م.غ فاروقي]

## زړه نه بدلېږي

وايي: دنيا بدله شوې، حالات بدل شوي، زما ژوند بدل شوی، اوس خاطرې يادونه نه پالي چې ترې وپوښتم، زړه هم بدلېږي؟!

بيا نو له حيا نه سترګې زمکې ته واچوي او وايي: پښتانه مېلمه نه رخصتوي. [م.غ فاروقي]

## د وخت مانا

اوسنۍ پرمختللې ټکنالوژي د هغوی د زيار پايله ده چې له وخت سره يې مينه کړې، له وخت نه يې ګټه اخېستې او په بې فايدې خيزونو يې خپل وخت نه دی تېر کړی، د وخت په مانا پوه شوي او د بريا راز يې ترې لاسته راوړی. [م.غ فاروقي]

## د ژوند بېړی

د وخت په اداره کې دې د ژوند د هر عمل لپاره مهالوېش وټاکه، وخت ورته ځانګړی کړه، که داسې ونه کړې نو د ژوند بېړی به دې بې ګودره ګډېږي او بيا به دې هر څه له لاسه ورکړي وي، د وخت په اداره دې د ژوند بېړی له ډوبېدو وساته. [م.غ فاروقي]

## دنيا؟!

د ډېر عمر څښتن نوح عليه السلام نه پرښتې وپوښتل: دنيا مو څنګه ومونده؟

وېې ويل: د هغه کور په څېر چې دوه دروازې ولري په يوه ننوتم او په بلې راووتم. [الدکتور علي الشبيلي]

## د وخت فضيلت وساته!

وخت د الله تعالى له لوري د علم، قوت او مال په څېر فضل دی، د الله تعالى د فضل او مهرباني درناوی وکړه، او د الله تعالى د فضل فضيلتونه وساته. [م.غ فاروقي]

له وخت سره مينه د ژوند زينت دی! [م.غ فاروقي]

وخت ډېره گرانبيه خزانه ده. [م.غ فاروقي]

## ستا نېټه ليکل شوې؟!

گرانه پوهېږې!

ستا اجل (نېټه) ليکل شوې، ټاکلې ورځې شپې لري، که ددې ټاکل شوي مهالوېش خيال ونه ساتې شونې ده چې ستر زيان سره به مخ شې. ژر شه له وخت نه گټه ترلاسه کړه، تاته نه ايسارېږي او ټاکل شوې نېټه هم نه بدلېږي. [م.غ فاروقي]

## د بريا تاج

عالمان وايي: د ځان اداره کول د برياليتوب راز دی.

که د ځان له ادارې سره وخت هم اداره شي نو د بريا تاج به ستا په برخه وي. [م.غ فاروقي]

## کوم وخت غوره دی؟!

که ښوونکي ته کېنې، ممثل ته کېنې او يا سندرغاړي ته کېنې ټول له تا وخت اخلي، مگر د پايلې په اعتبار چې دنيا او اخرت کې تاته گټه ورسوي هغه وخت دی چې له عالم او معلم سره يې تېر کړې.

الدکتور علي الشبيلي

## ښايسته ژوند

الله ته نږدې شه، هلته ښايسته ژوند دی، چې ترې لرې يې وبه يې نه وينې. [ژباړه]

## د مينې مدرسه

لومړۍ درجه هغوی ګټي چې د مينې مدرسه کې د خوب خواږه د شوګير پر خوږو بدلوي، شپې روښوي او ځان خپل هدف ته رسوي.

م.غ فاروقي

## مهالوېش

وخت دې وارزوه، هو؛ اوونيز مهالوېش جوړ کړه، د هرې ورځې لاسته راوړنې او ننګونې پکې نوټ کړه، بيا دواړه پرتله کړه چې له وخت سره مينې څه درکړي او له وخت نه غفلت په کومو زيانونو ګواښلی يې.

م.غ فاروقي

## هدف پالونکی شه!

خيالونه مه پاله، هدفونه وټاکه، له وخت سره کاري عملي وفا دې خپل هدف ته رسوي او خيالونه دې يوازې د وخت بېړۍ په سمندر لاهو کوي. [م.غ فاروقي]

## سپينه پاڼه!

سپينه پاڼه راواخله، د اوونۍ تر ټولو اهم کارونه پکې په لنډيز سره نوټ کړه، هو؛ هغه چې خپله ترسره کوې او يا يې نورو ته سپارې، هغه چې ډېر اهم دي رامخکې يې کړه او چې مهم دي ورپسې يې کړه، چې مهم نه دي، مګر کول غواړي وروسته يې کړه د اوونۍ پای کې يې وارزوه چې کوم ترسره شوي او کوم د ځينو له امله پاتې يا دې له پامه غورځول شوي، دا پاڼه له ځانه سره ساته! [م.غ فاروقي]

## د فېس بوک پوسټ

وخت ته خير شه ، ګټه ترې واخله ، د فېس بوک پوسټ ترې مه جوړوه چې مخې له دې راشي په سرسري نظر وروګورې او ترې تېر شې.

م.غ فاروقي

## غواړې چې نوم دې د تاريخ پر پاڼه راشي!؟

اخلاق دې پر داسې ګرانبيه ګاڼه سينګار کړه چې د مينې او له نورو سره د مرستې کيسې دې د تاريخ پر پاڼو راشي، زړونه دې وغواړي، مينه دې وغواړي، هو؛ ديدن دې وغواړي او د خلکو د زړونو پر لوحو ستا نوم او مينه نقش کړای شي. [م.غ فاروقي]

## د تش وخت سينګار

د انتظار دقيقې پر تسبيح او استغفار سينګارې کړه.[دکتور عايض القرني]

## د ګناه زهر

کوچني ګناهونه د وخت په تېرېدلو لويېږي. [شيخ احمد خطيبه]

اوس نو هڅه وکړه چې د ګناهونو له پالنې تېر شې، د وخت ارزښت ته پام وکړي او د ګناه زهر دې د توبې او استغفار په ترياکو بې اثره کړې.

م.غ فاروقي

## د وخت خواږه

کوښښ وکړه چې د خپلو بچيانو سره ډېر کېني هغوی ته ډېر وخت ورکړه، مينه ورکړه او دې ته يې مه اړ کوه چې نورو ته پناه يوسي او له نورو سره کېني هغوی ته مهربان پلار شه، خواږی دوست شه.

بلکې د هغوی لپاره د هغوی ژوند کې هر څه شه، هو؛ هغوی ته غوره رهبر او د ژوند بېلګه شه!. [ژباړه]

پام دې وي چې اولادونه دې د وخت له خوړو بې برخې نه کړې، دوی پر تا حق لري چې ډېره مينه او ناز ورکړې.

## د نجات قافله

که غواړې چې د تکبير تحريمه فضيلت ترلاسه کړې، بيړه وکړه، له امام سره الله اکبر کې يوځای شه او دغه وخت کې په دعا، مسواک او له نورو سره په خبرو ځان مه بوختوه. [محمدالعثيمين رحمه الله]

هڅه وکړه!

د نجات قافلې سره جوړه شه، که د وخت ارزښت دې قبول کړ او د امام الله اکبر سره سم په دې ليکه کې ننوتې، د دنيا او د هغې له ټولو خزانو ستره خزانه به دې ترلاسه کړې وي.

دا هغه ګرانبيه وخت دی چې يوازې د تکبير تحريمه شېبو کې نغښتی.

محمد صلی الله عليه وسلم ويلي:

لومړنی تکبير (الله اکبر) له دنيا او هغه څه نه غوره دی چې په دنيا کې دي.

عقلمند خلک د وخت ددې ګرانبيه شېبو قدر ساتي او د يو الله اکبر په معنوي څواک ټوله دنيا ګټي. [م.غ فاروقي]

## د وخت لوريينه

وخت په ګټورو کړنو ښايسته کړه، وخت ستا په لاس کې دی، ستا لپاره دی، دا له تا پورې اړه لري چې څه پکې کوې.

له يو حکيم نه پوښتنه وشوه: کله په څه شي پښېمانه شوی يې؟

حکيم وويل : هو؛ پر هغه نېکۍ چې لاس مې پرې برشوی او نه مې ده کړې. [ژباړه]

## عشق؟!

هغه چانه د نېکمرغي د مانا په اړه مه پوښته چې د سبا لمونځ نه کوي. هغه چې خپل رب ته په عبادت درېږي او هغه چې له بالنبت سره په عشق بوخت دي برابر نه دي. [مملكة الافكار]

که غواړې چې ژوند دې نېکمرغه شي، د ارام او سکون نه برخمن شي، د لمانځه پابندي کوه، څکه محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم ویلي : (زما د سترګو یخوالی په لمانځه کې دي). ([1])

## روزمره اختر؟!

هره ورځ ستا نوی اختر دی، مګر هغه چې د وخت له دې سترې برخې سره مینه وکړې، د الله تعالی رضا پکې ترلاسه او هم یې له نافرمانی نه ډډه وکړې.[م.غ فاروقي]

## مناجات

د مناجات خوند په عبادت کې دی، دا خوند هغوی ترلاسه کولی شي چې د وخت په قدر پوه وي او الله تعالی سره په لمانځه، ذکر، د قران تلاوت او یا نورو تسبېحاتو د زړه لارې جوړوي او دا تر ټولو ستر کار بولي.[م.غ فاروقي]

## د سجدې په ارمان

د لمانځه سره مینه وکړه، دا مینه په دنیا او اخرت کې د بریا نښه ده، لمانځه نه خوند واخله، الله تعالی ته نږدې شه، سینه به دې طاعت ته پرانېستل شي، د عبادت په خوند به پوه شې، الله تعالی به درسره مینه کوي، په میلونو کسان له زمکې لاندې په دې ارمان پراته دي چې ژوند

---

[1] سلسلة الاحاديث، الصحيحة دريم ټوک

ورکړای شي، الله تعالی ته بنده ګي وکړي که څه هم پر یوه سجده وي.[م.غ فاروقي]

## خاتمه

که د وخت ارزښتمنې دقیقې له لاسه ورکړې، خواشیني پرې وکړه، عبرت ترې واخله چې بیا یې له لاسه ورنکړې ځکه خاتمه نه ده معلومه چې څنګه به وي؟

سعید بن المسیب رحمه الله ۴۰ کاله تکبیر تحریمه سره لمونځ کړی و بیا یې هم ژړل، ترې وپوښتل شو: ولې ژاړئ؟

ویې ویل : وېرېږم چې کافر مړ نه شم!.[ژباړه]

## د غافلینو لېست

ځان د غافلینو له لېست نه وباسه، څو شپېې د قران تلاوت وکړه، هم به دې الله تعالی راضي کړی وي او هم به دې د خپل وخت قیمت پېژندلی وي.

محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم ویلي: (څوک چې لس ایتونه د شپې ولولي له غافلینو څخه نه لیکل کېږي). [الترغیب والترهیب]

په تېره ورځ دې مه خپه کېږه، هغه بیا نه راګرځي، په ننی ورځ (تاسف) مه کوه دا هم د رحلت په شپبو کې ده.[عایض القرني]

## رحمت کله نازلېږي؟!

ته هره شېبه د الله تعالی رحمت ته اړتیا لرې، الله تعالی خپل رحمتونه هم تا لپاره ساتلي، اوس نو د رحمت دا نسخه هم وکاروه چې له ډېرو رحمتونو څخه خوند واخلې.

(استغفار ډېر ډېر وایه ځکه تاته څه پته ده چې رحمت کله نازلېږي).

حسن بصري رحمه الله

## زرینه کرښه

وخت مو پر لکچر او شرح ورکولو مه ضایع کوئ، خلک یوازې هغه څه ته غوږ ږدي چې اورېدل یې غواړي. [باولو کویلو]

## د وخت ادب

وخت هم له تا نه مینه غواړي او هم له تا نه د (کرامت څښتن) د مخلوق په څېر ادب غواړي، د وخت ادب دې د وخت ساتل دي.

م.غ فاروقي

امام ابن قیم رحمه الله مدارج السالکین کې لیکلي: څوک چې د وخت ادب ونه ساتي، وخت پرې د غضب او غوسې سبب کېږي.

ابن قیم رحمه الله

## د هیلو هار

د وخت له انقلاب او بدلون سره د هیلو هار مه پرېکوه، وخت هر څه لري.

د عربي نړۍ خوږ ژبی لیکوال او عالم لیکلي: که خپګان درته یو ځل په لاره کې ودرېږي، زر ده چې خوشحالي به درته څو څو ځلې په لاره کې ودرېږي، نو؛ مسکانده اوسه!.[عایض القرني]

## تهجد مخونه ښایسته کوي

د تابعينو له سردار حسن بصري رحمه الله نه پوښتنه وشوه: د تهجد کوونکو مخونه څنګه ښکلي وي؟

هغه وويل : دوی د رحمن ذات سره خلوت کوي هغه يې مخونه پر خپل نور پوښي.

د نوراني ښکلا د ورښت دا وخت د شپې په وروستی برخه کې دی.

## ۲۴ ساعته

دا هېڅکله مه وايه چې کافي وخت نه لرم، ځکه د نړۍ د ټولو سترو نوميالیو شخصیتونو ورځې همدا ۲۴ ساعته وې، له دې نه زياتي څه وخت نه و ورکړل شوی.[جکسون براون]

## د سرو ګلونو بڼ

مه ناهيلی کېږه! دا قراني پرېکړه ده (سختی پسې اساني راځي) ډېر ژر ده چې وخت به دې پر مینه ونازوي، خوشحالي به دربانديې ولوروي او د ستونزو له اغزن چاپيريال نه به د سرو ګلونو بڼ ته ورننوځې.[م.غ فاروقي]

## زلميه!

زلميه! مور او پلار، ورونه او خويندې دې د مستقبل په هېنداره کې د ارماني غوټيو د شونډو سپړلو ته شېبې شماري، پام چې وخت درنه څوک غلا نه کړي.[م.غ فاروقي]

## د کائناتو مدرسه

د ورځې دقيقې د الله تعالی په کائناتو کې د فکر او سوچ لپاره وټاکه، په داسې حال کې چې يوازې يې، ددې لپاره چې ايمان دې زيات او يقين دې پياوړی شي.[الدکتور عايض القرني]

گرانه لوستونکيه!

د کائناتو د مدرسې مضامين د خورو ورو زلفو په څېر ستا مخې ته غوړېدلي دي، د مضامينو د منځپانګې رنګينيو کې ژور سوچ او فکر وکړه چې د ايمان قوه دې لا زياته پياوړې شي.

## وخت غنيمت وګڼه!

علامه محمد صالح العثيمين رحمه الله ويلي:

همدا اوس ته فرصت لرې، وخت غنيمت وګڼه څه وخت د الله تعالى د کتاب تلاوت لپاره ځانګړی کړه، څه وخت د عمل صالح لپاره وټاکه.

د شپې په وروستۍ برخه کې د سبا د لمانځه نه وړاندې راپاڅېږه، که څه هم چې نيم ساعت وي، د خپل رب سره مناجات وکړه، دعا ترې وغواړه ځکه الله تعالى ددنيا اسمان ته رانښکته کېږي، وايي څوک شته چې له ما نه دعا وغواړي دعا به يې قبوله کړم، څوک چې له ما نه د څه سوال وکړي وربه يې کړم، څوک چې له ما نه بخښنه وغواړي بخښنه به ورته وکړم.[شرح الكافية الشافية ۴ج- ۲۸۰مخ]

## د جمعې په ورځ کې د سوال قبلېدلو ساعت

په دې کې ډېر اقوال دي، مګر غوره يې دوه ښودل شوي.

لومړی دا چې دا ساعت د جمعې په ورځ کې د مازيګر د لمانځه وروسته د لمر تر پرېوتلو پورې دی، دا د هغه چا په حق کې چې د ماښام د لمانځه انتظار باسي که جومات کې وي او که په کور کې وي، د خپل رب نه دې دعا وغواړي سړی وي او که ښځه، دا د سوال قبلېدلو غوره وخت دی مګر دا حق هغه چا ته حاصل نه دی چې له شرعي عذر پرته په کور کې د ماښام او يا نورو وختونو لمونځ کوي لکه څنګه چې له شرعي دليلونو معلومېږي.

۲ قول دا دی چې دا وخت هغه مهال پیلیږي چې امام د خطبې لپاره منبر ته پورته شي تر هغې چې د لمانځه نه وزګار شي.

## که غواړې چې دعا دې قبوله شي؟

په دې دواړو وختونو کې دعا د قبلېدلو ډېر لیاقت لري څکه ډېر صحیح احادیث او دلایل پر دې شاهد دي، د جمعې د ورځې په نورو ساعتونو کې هم ددې ساعت هیله شته څکه د الله تعالی فضل او رحمت ډېر پراخ دی.[شیخ عبدالعزیز بن باز رحمه الله]

گرانقدره لوستونکیه!

هیله ده چې د جمعې په ورځ کې دا ارزښتمن وخت په مینه وپالې او الله تعالی ته پکې د خپل زړګي د ارمانونو دسمال پرانیزي، پام دې وي چې د وخت له دې لوریېنې غافله نه شې څکه د اوونۍ اوومه ورځ یوازې د جمعې مبارکه ورځ ده.

## ځان اداره کړه!

وخت تېرېږي، اجل نږدې کېږي، ژوند نیمګړی کېږي، که نېکو کار یې زیات والی پکې راوله، که بد کار یې ځان دې کنترول کړه.

مملكة الافكار

## درې مسلمانان

امام احمد او نسائی رحمه الله علیهم (عمل یوم واللیلة) کې په حسن سند سره د عبدالله بن شداد رضی الله عنه په روایت حدیث نقل کړی. چې د بني عذره قبیلې درې کسان نبي کریم علیه السلام ته راغلل، اسلام یې قبول کړ، عبدالله رضی الله عنه وایي، رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: څوک به دوی ته مېلمستیا وکړي؟

طلحه رضی الله عنه وويل: ای د الله تعالی رسوله! زه به مېلمستيا ورکړم. دوی د طلحه رضی الله عنه سره د مېلمنو په توګه اوسېدل، نبـي عليه السلام يوه ډله جهاد ته واستوله.

له دوی څخه يو کس د اُحد غزا ته لاړ او شهيد شو. راوي وايي: بيا يې بله ډله واستوله. دا ځل دويم کس (د جهادي کـاروان) ملګـری شـو او شهيد شو.

ابوطلحه رضی الله عنه وايي: څه موده وروسته درېيم کس پر خپل بستر مړ شو.

طلحه رضی الله عنه وايي: دوی درې واړه مې خوب کې په جنت کـې له ځان سره وليدل.

هغه چې پر خپل بستر مړ شوی و، د دوی مخ ته روان و، هغه چـې تـر ټولو وروسته شهيد شوی و، د ده پسې و.

او هغه چې لومړی شهيد شوی و، تر ټولو وروسته و.

بيا زه نبي عليه السلام ته ورغلم او خوب کې ليدلې کيسه مې ورته وکړه. رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: ولې انکار کوئ؟! د الله تعالی پـه نېز له هغه مؤمن څخه هېڅوک غوره نشته، چې د اسلام په حالت کـې ډېر عمر ورکړای شوی وي، چې د همدې له امله يې تکبير (اَللّٰهُ أَکْبَرُ)، تسبيح (سُبْحَانَ الله)، تهليل (لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللّٰهُ) او تحميد (اَلْحَمْـدُ لِلّـٰه) ډېـر ويلي وي.

دا ستر حديث د هغه چا پر عظمت او شرافت دلالت کوي، چـې عمـر يې اوږد او عمل يې ښايسته وي او ژبه يې تل پر الهي ذکر لمده وي.

## د اوښکو څاڅکي

الله تعالی ددې قدرت لري چې ستا هره اوښکه پر خوشحالی بدله کړي، مگر ددې خپل وخت دی او ستا د اوښکو په هر څاڅکي کې حکمت دی، مه وارخطا کېږه لږ صبر او انتظار وکړه.[زباړه]

## د ريښتينولی ازموينه

د سبا د لمانځه اذان د نورو وختونو له اذان نه ځانگړې بڼه لري، توپير يې په دې کې دی چې دوه ځل (الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ)، لمونځ له خوب نه غوره دی) لوستل کېږي او په دې کې د مؤمن د ريښتينولی ازموينه ده، هڅه وکړه ورځ دې د سبا په لمانځه پيل کړه، خوب پرېږده او د وخت دا گرانبيه شېبې د ريښتينولی په عبادت ښايسته کړه.

م.غ فاروقي

لمونځ په غوره وختونو کې تاکل شوی، د لمانځه وروسته دعاگانې پر ځان لازمې کړئ.[امام مجاهد رحمه الله]

## د ورځې لومړني ساعتونه

د ورځې له لومړيو ساعتونو گټه ترلاسه کړه، هو؛ ورځ ټوله د وخت له خزانې پورې اړه لري، مگر د سبا د لمانځه وروسته دوه ساعتونه د وخت هغه گرانبيه گلدستې دي چې د وخت لومړني قدر ساتونکي پيغمبر محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم به دې ساعتونو لپاره دعا کوله، هو؛ د برکت دعا.

ويل به يې: (اللهُمَّ بَارِكْ لِأُمَّتِي فِي بُكُورِهَا)[1]

[1] مسند أحمد ط الرسالة ۲/۴۳۹

ژباړه: ای الله زما امت لپاره د ورځې پر لومړیو شېبو برکت نازل کړه.

دې ساعتونو کې په ټولیز ډول له خلکو سره اړیکې کمې وي، فکر او دماغ ارام وي فکر په ټوله مانا تصمیم او پلان ته تیار وي، هڅه وکړه چې دا ګرانبیه شېبې له لاسه ورنکړې، زده کړه ترې وکړه او هم یکې زده کړه وکړه، څو ساعته وروسته بیا د ورځینې ژوند اړوندو چارو کې بوختېږې او دومره به وزګار نشې چې وخت ته مینه ورکړې.

م.غ فاروقي

## ستره ډالۍ

د نړۍ ټولو عقلمند پر دې اجماع کړې چې وخت تر ټولو ستره ډالي ده چې الله تعالی انسان ته ورکړې.[عائض القرني]

## ټولیزه ستونزه

وخت تر ټولو ګرانبیه څیز دی، مګر زموږ په وړاندې تر ټولو ارزانه څیز دی، ځکه زموږ ډېری وختونه بې فایدې تېرېږي، موږ ډېر وختونه د خپل ځان په زیان تېروو، تېروتنو، غفلت او تنبلۍ کې اخته یو، دیني چارې بې ارزښته ګڼو او که ارزښت ورکوو نو کره ارزښت نه وي په ډېرې خواشینۍ سره چې دا په عموم کې د مسلمانانو ستونزه ده.

ابن عثیمین رحمه الله - شرح ریاض الصالحین ۳۴۵مخ

## غنیمت

محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم ویلي:

د روغتیا په مهال انسان د ټولو عبادتونو ورتیا لري، لمونځ کولی شي، قران لوستلی شي، ذکر او دعاګانې کولی شي، د نورو خلکو چوپړ کولی شي، مګر د ناروغۍ په وخت کې بیا د ژوند د نورو چارو سره سم عبادتونه هم زیانمنېږي، ښایي نبوي سپارښتنې ته په پام د صحت په

شپېو کې بدني او مالي عبادتونه وکړو، الله تعالی او هم د هغه مخلوق راضي وساتو هسې نه چې د ناروغی پر مهال له دې تولو بې برخې کړای شو.[م.غ فاروقي]

## د مېږيانو شاګرد شه!

له وخت نه ګټه واخله، له مېږيانو يې زده کړه، مېږيان د اوړي په موسم کې رنګا رنګ کړاونه ګالي، درانه پېټي لېږدوي، خپلې اړتياوې پوره کوي، مګر د ژمي په موسم کې بيا خپلو خالو نه نه راوځي، په ارام او سکون خپل ژوند انجاموي.[م.غ فاروقي]

## طلايي هار

د محمدمصطفی صلی الله عليه وسلم موسکا شريعت دی، ژړا يې شريعت دی، هغه د ژوند او خوږو اخلاقو نقشه او ژوندی مدرسه وه، هغه د خپل عمر ټولې شېبې، ثانيې او دقيقې د الله تعالی په ذکر، د قران په تلاوت، لمانځه، دعوت او د مسلمانانو په خدمت ګرانبيه کړې وې، له وخت سره يې مينه کوله او وخت ته يې د عبادتي ښکلاګانو طلايي هار په غاړه کاوه.[م.غ فاروقي]

## ثانيه؟!

وخت نه راګرځي، آن يوه ثانيه هم بېرته نه راګرځي. [عائض القرني]

## د وخت غبرګه

محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم ويلي:

د قيامت په ورځ به تر هغې د بنده قدم له خپل ځايه ونه خوځېږي چې د څلورو په اړه ونه پوښتل شي، عمر دې څه کې تېر کړی، ځواني دې څه کې تېره کړې، مال دې له کومه ځايه ګټلی او کوم ځای کې دې لګولی، پر خپل علم دې څومره عمل کړی.[ژباړه]

عمر ، څواني، شتمني او علم څلور هغه ګرانبيه شتمنی دي چې يو له بل سره ژورې اړيکې لري، ددې ټولو ارزښت هغوی پېژني چې د وخت درناوي ته د زړه له تله ژمن دي او له دې ټولو د ووخت په غېږه کې خوند اخلي.

## له ځانه وپوښته!

د ورځې په وروستيو کې له ځانه وپوښته!

نن دې څو وخته لمونځ وکړ؟

قران کريم دې څومره تلاوت کړ؟

څومره اذکار او تسبيحات دې ولوستل؟

د نېکۍ څومره کارونه دې وکړل؟

او څومره دې خلکو ته خير ورساوه؟

دا او دې ته ورته پوښتنې ځواب کړه، خپله به پوه شې چې له وخت سره دې څومره مينه کړې؟!. [م.غ فاروقي]

## لوړ همت

د نړۍ سترو عالمانو او نوميالیو شخصيتونو ته هم همدا ورځې او شپې ورکړل شوې وې، مګر د هغوی د بريا راز په دې کې و چې لوړ همتونه يې لرل.[عائض القرني]

## کار او مرګ

المانيان له وخت سره د ځانګړې مينې له امله پر دېرو او تاريخي ځليو دا شعار ليکي : کار او مرګ.[عائض القرني]

## تاریخ په ځوانی کې جوړېږي!

محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم ویلي: ځواني له زړښت نه مخکې غنیمت و ګڼه.

د ځوانۍ عمر ګرانبیه وخت دی، په دې موده کې انسان ډېر پرمختګ کولی شي، هو؛ هغه ځوان چې وخت په بې خایه کارونو کې تېر نه کړي، د ځوانۍ د ګرانبیه شېبو درناوی وکړي او د ایمان او عمل صالح سربېره يې په کار او عمل سینګارې کړي.

د نړۍ خوږ ژبی خطیب عبدالله عائض القرني هم وایي : (تاریخ په ځوانۍ کې جوړېږي).

هوکی؛ ګرانقدرو ورونو او خویندو!

ابراهیم علیه السلام ځوان و، اصحاب کهف ځوانان و، د تاریخ ډېری اتلانو د خپل تاریخ پاڼې په ځوانۍ کې په مېړانو او اتلولیو سینګارې کړي.

تاسو هم ددې ارزښتمن پړاو قدر وکړئ چې د تاریخ پاڼې مو څلانده شي.[م.غ فاروقي]

## مینه درسره لرم!

انس رضی الله عنه وایي: یو کس له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ناست و، چې یو سړی تېر شو، ناست سړي وویل: ای د الله تعالی رسوله! (صلی الله علیه وسلم) زه له دغه کس سره مینه لرم.

رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: هغه دې پوه کړی دی؟

ده وویل: نه!

رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: هغه پر دې پوه کړه، چې مینه درسره لرم.

سړی خپل مینه وال پسې روان شو، کله چې ورسره یوځای شو، ورته یې وویل: د الله تعالی د رضا لپاره درسره مینه لرم.
هغه ورته وویل:(أَحبَّكَ اللهُ الذِي أَحبَبتَنِي لَه). (هغه الله تعالی دې له تا سره مینه وکړي، چې د هغه په پار له ما سره مینه کوې.)[۱]

د مینې څرګندول اصیل اسلامي ادب دی، اسلام د دې لپاره چې مخامخ لوری ستا له مینې او پېرزوینې خبر شي، لارښوونه کوي، چې له چا سره دې د الله تعالی د رضا لپاره مینه کول زړه غواړي؛ نو مینه دې مه پټوه، دا فرصت له لاسه مه ورکوه، چې خپل نوي دوست ته ووایې: له تا سره مینه لرم!
د سپېڅلې مینې او زړه راښکونکو اخلاقو لومړني استاد محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم دا طریقه عملي کړې ده، هغه اسلامي امت ته دا ښوده، چې د مینې، ورورولۍ او سپېڅلتیا په اخلاقو سمباله ټولنه څنګه جوړېږي.
یوه ورځ یې معاذ رضی الله عنه له لاسه ونیو، ورته یې وویل: معاذه! والله درسره مینه لرم.
بیا یې ورته وویل: تاته وصیت کوم، معاذه! تر هر لمانځه وروسته دا دعا ویل مه پرېږده: (اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى شُكْرِكَ، وَذِكْرِكَ، وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ).[۲]

---

[۱] الأدب المفرد بالتعليقات (ص: ۲۷۹).
[۲] جامع معمر بن راشد (۱۰/ ٤٣٩).

## ولې؟!

مور له ماضي سره ځکه مینه کوو چې هغه تللې که بېرته راوګرځي بیا به يې بده ګڼو. [هټلر]

## مېلمنه؟!

ورځ ستا مېلمنه ده، ښه سلوك ورسره وکړه، که ښېګڼه ورسره وکړې، ځې او ستاینه به دې کوي او که ناکاره سلوك ورسره وکړې هم ځي او بدي به دې بیانوي. [حسن بصري رحمه الله]

## لمونځ

لمونځ د فقیر، بې وزله بنده او غني ذات په منځ کې اړیکه ده، دا اړیکه جوړه ساته چې الله تعالی دې په مینه ونازوي، که غواړې چې ارام او هوسا ژوند وکړې، لمونځ د ذهني ارام او د زړه راحت لپاره بېړنی تجربه شوې نسخه ده. [م.غ فاروقي]

محمد صلی الله علیه وسلم ویلي:
په تاسو کې غوره هغه څوك دی چې عمر يې اوږد وي او عمل يې ښایسته وي. [رواه مسلم]

## یوه ورځ؟!

د ستر محدث علامه عبدالعزیز الزهراني سره مې ملاقات وشو، هغه مهال يې عمر اتیا کاله و، ترې مې وپوښتل: عمر دې څومره دی؟
ویې ویل : یوه ورځ، پرون ورځ باندې هېڅ پوه نه شوم او سبا ورځ مو لا په ژوند کې نشته. [الدکتور عائض القرني]

## حال جوړه کړه!

په ماضي کې فکر کول حماقت او لېونتوب دی، څکه ستونزه داده چې موږ په ماضي کې پاتې کېږو او خپل حال نه جوړوو.

ابن السعدي رحمه الله

معاويه بن قرة رحمه الله وايي: د قيامت په ورځ به د ټولو خلکو نه زيات سخت حساب والا هغه کس وي چې روغ رمټ او اوزګار وي.

الفوائد لشيخ امين الله

## د يوازيتوب زندان

محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم ويلي: يوازيتوب له ناکاره ملګري نه غوره دی. (1)

همدې نبوي فرمان ته په پام يوازيتوب هم بېلابېلې بڼې لري، هغه يوازېتوب چې د انسان اړيکه پکې د کائناتو له خالق سره وصل وي، د خلوت په مانيزه مانۍ کې د مناجات په راز و نياز بوخت وي، زړه کې يې د الهي ذکر بلبلان د توحيد نغمې زمزمه کوي او په همدې نوراني فضا کې د کائناتو بڼ ته ورننوځي او د کائناتو په نا اشنا جوړښت کې د فکر څواک کاروي، د يوازېتوب دا ډول خورا ګرانبيه او ګټور دی.
مګر هغه يوازېتوب چې د الله تعالی د خوښې مناجات پکې نه وي، فکر د عبرت په توګه د کائناتو د طبيعي ښکلاګانو ته نه ورځي، يوازې د نېمګړې دنيا هيلو او رامانونو يې د زړه محل ولکه کړی وي، فکر يې کله د ماضي د خاطرو کتاب را اخلي او کله بيا د راتلونکي ژوند خيالي خوبونه ويني کله د نفسي غوښتنو په جال کې ښکار او کله بيا د

1 المستدرك على الصحيحين للحاكم ۳/۳۸۷

یوازېتوب په دې زندان کې د شیطان د مکر په لومو کې نښلېږي، د یوازېتوب دا ډول خورا زیانمن دی، انسان ته یې له خیالي ګټو حقیقي ضررونه زیات دي، که غواړې چې د بریا له خوږو شیبو ګټه ترلاسه کړې، د نېکمرغۍ په فضا کې الوت وکړې، له مجاز نه حقیقت ته راشې همدا شېبه هوډ وکړه د یوازېتوب د زندان دېوالونه د عمل په قلنګ مات کړه.

د رحمت کتاب قران کریم را واخله چې الله تعالی درسره خبرې وکړي، په ایماني او ریښتیني تاریخي خاطرو دې زړه ته ارام او سکون وبښې، نبوي سنت مطالعه کړه او یا هم داسې نوره ګټه ترلاسه کړه چې د یوازېتوب له سپېره حالت نه دې د ایماني بڼ لور ته بوځي، بېړه وکړه وخت دې لحاظ نه کوي، ته ورته اړتیا لرې، هغه تاته اړتیا نه لري، مینه ورسره وکړه او له ګرانبیه وجود نه یې ستره ګټه ترلاسه کړه.

م.غ فاروقي

## نړېوال اعلان

هو؛ داسې اعلان چې د توحید پر ګرانبیه ګاڼه پسوللی، د نجات لورته بلنه ورکوي، نور او رڼا ته بلنه ورکوي، د مؤمن معراج ته خلک وربولي، د توحید او رسالت غبرګ ارزښتونه خپروي، ۱۵ کلمې لري، شپه او ورځ کې پېنځه ځلې خپرېږي، ۱۷۶ توري لري.

د یووالي اعلان، د اتفاق اعلان، هو؛ د مینې اعلان (اذان) یادوم.

ګرانه لوستونکیه!

د مینې پیغمبر محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم وایي : د اذان په مهال دعا قبلېږي.

د اذان د خپرېدو شېبې ګراني او ارزښتمنې شېبې دي، دې شېبو کې دې لاسونه د کائناتو خالق ته لپه کړه، د حاجتونو حل ترې وغواړه، الله تعالی د مؤمن دعا قبلوي، دا په یاد ولره، یا د اذان د کلماتو مسنون ځواب ورکړه.[م.غ فاروقي]

د اذان په وخت کې الله تعالی نه دعا وغواړه او هم له اذان نه وروسته دا سنت ژوندی کړه:

اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِحَقِّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ، وَالصَّلاةِ الْقَائِمَةِ آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ، وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا، الَّذِي وَعَدْتَهُ إِنَّكَ لاَ تُخْلِفُ الْمِيعَادَ.[۱]

یادونه: له اذان وروسته درود ویل هم په صحیح احادیثو کې ثابت دي، له درود ویلو وروسته به پورتنۍ دعا لولي.

## وربښمینې شېبې

د وخت رنګین ګلبڼ ته ورننوځه او (شنه پاڼه د فقیر ډالۍ) په پار ترې دا ګلونه په مینه ونازوه چې د دعا خولی دې له خوشبویه الهي نوراني ورېمو ډکه شي.

کله چې رب العالمین ته سر په سجده ږدي دا د محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم د فرمان پر بنسټ غوره وخت دی، الله تعالی سره د مناجات تر ټولو ښکلې بڼه ده، دې وخت نه ګټه واخله او خومره چې کولی شې الله تعالی نه پکې دعاګانې وغواړه.

---

۱. السنن الصغری - (۱ / ۱۰۱)

کله چې تشهد (التحیات لله) خلاصه کړې له درود وروسته (اللَّهُمَّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي ظُلْمًا كَثِيرًا، وَلاَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ، فَاغْفِرْ لِي مِنْ عِنْدِكَ مَغْفِرَةً إِنَّكَ أَنْتَ الغَفُورُ الرَّحِيمُ)[1]

(اللهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ، وَمِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ، وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ)[2]

او نورې مسنونې شرعي دعا ګانې الله تعالی نه وغواړه، خزانې یې په همدې انتظار دي چې ته یې وغواړې او الله تعالی یې درکړي.

د اذان او اقامت ترمنځ قیمتي شېبو کې دې دعا هېره نه شي، د رحمت نبي صلی الله علیه وسلم ویلي : د اذان او اقامت په منځ کې دعا نه رد کېږي.

د سفر په وخت کې دعا دې هېره نه شي، سفر هغه وخت دی چې له یو لوري درته الله تعالی ۴ رکعاتي فرضي لمانځه کې دوه رکعاته معاف کړي، له سنتو خلاص یې، روژه یې سفر کې معاف کړې او ددې مهال ستره لورېینه داده چې محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم ویلي : (د مسافر دعا قبلېدونکې ده).

ترمذي روایت کړی او امام الباني صحیح ګڼلی

---

[1] صحیح البخاري (۹/ ۱۱۸).

[2] صحیح مسلم (۱/ ۴۱۲)

## درې قبلېدونکې دعاګانې؟!

محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم ویلي : درې قبلېدونکې دعاګانې؟! د پلار دعا، د مسافر دعا، د مظلوم دعا.[ابوهریرة رضی الله عنه]

## د بدن زکات

روژه د بدن زکات دی.

محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم ویلي: د روژتي دعا د روژه ماتي په وخت کې نه رد کېږي.

دا د الله تعالی د حکم د درناوي او سرته رسولو هغه ګرانې شېبې دي چې له یو پلوه انسان خوړو ته ډېر لېواله وي، له بل لوري د شرعي شپې د داخلېدلو شېبې خاري چې ماښام شي او روژه ماته کړم، ددې سربېره دا هغه قیمتي وخت دی چې د مؤمن اړیکه لا زیاته د مؤمنانو له رب سره پیاوړې کېږي، د اطاعت او بنده ګۍ عملي ازموینه ورکوي.

ګرانه! پام دې وي چې دې زرینو شېبو کې دعا ګانې هېرې نه کړې.

م.غ فاروقي

## نېکمرغه شېبې!

په نېکمرغه شېبو کې د الله ثنا ووایه، په سختو وختونو کې پر الله ښه ګومان ولره، په ارامو شېبو کې الله یاد کړه، په دردمنو وختونو کې د الله پر رحمت باور ولره او په تړولو وختونو کې استغفرالله ووایه، هغه رقیب او مجیب دی.[م.غ فاروقي]

## ژر شه، انتظار مه کوه!

فرصتونه له لاسه مه ورکوه، بیړه وکړه ته د نېکیانو ترسره کولو لپاره په میلیونونو چانسونه لرې، ځنډ مه کوه، وخت نه ځنډېږي، الله تعالی سپارښتنه کوي (فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ). سورة البقره

ژر شه نېکي مخکې له تللو ترلاسه کړه، انتظار مه کوه په دې برخه کې سيالي وکړه، د الله تعالی هغه مؤمنان خوښېږي چې نېکو عملونو کې يو له بله مخکې کېږي او سيالي کوي. [م.غ فاروقي]

## ګټوره ملګرتيا!

له خلکو سره داسې ملګرتيا وکړه، څنګه چې له اور سره کوې، ګټه ترې ترلاسه کړه او خيال ساته چې جامې دې ونه وسوزوي.

شفيق بلخي- سير السلف الصالحين ۱۲۱۱مخ

## د الهي ذکر ګاڼه ترلاسه کړه!

(فَٱذۡكُرُونِيٓ أَذۡكُرۡكُمۡ)

ژباړه: پس تاسو ما ياد کړئ، زه به تاسو ياد کړم.

قدسي حديث دی، محمدمصطفی صلی الله عليه وسلم يې له الله تعالی نه روايت کوي : څوک چې ما ځانته يادوي زه يې ځانته يادوم او څوک مې چې ډله کې يادوي زه يې هغې نه غوره ډله کې يادوم.

مدارج السالکين ۳ج- ۲۳۰مخ

الله تعالی ډېر مهربانه دی، قدسي حديث دی محمدمصطفی صلی الله عليه وسلم يې الله تعالی نه حکايت کوي: څوک چې ماته د يو لوېشت په اندازه رانږدې شي، زه ورته يو لاس نږدې کېږم او څوک چې ماته يو لاس رانږدې شي زه ورته دوه لاسه نږدې کېږم او څوک چې ماته پر قدمونو (پياده) راشي زه ورته په منډه راځم.

مدارج السالکين ۳ج- ۲۲۹مخ

## د رحمت وختونه

د فرضي لمونځونو، د سلام گرځولو وروسته وختونه ستر او گرانبيه وختونه دي، په دې وختونو کې د الله تعالی رحمت نازلېږي، د پاځېدلو بېړه مه کوه، کېنه! استغفار، تسبيح، حمد، لا اله الا الله او الله اکبر ووايه. [عبدالله ابن باز رحمه الله]

## له ثانيه گر يې زده کړه!

که غواړې چې د وخت په چټک تېرېدلو پوه شې د شپې په چوپتيا کې د دېوالي ساعت د ثانيه گر حرکت ته پام وکړه، پوه به شې چې وخت چا انتظار ته نه کوي.[م.غ فاروقي]

## څلور ستر نعمتونه

کله چې دربانديې ورځ او شپه په داسې حال کې تېره شي چې دين، بدن، مال او عيال دې پکې له افتونو بچ پاتې شي، د الله تعالی ډېر شکر ادا کړه چې په امن او صحت يې نازولې يې، ځکه ډېری په همدې ورځ کې له دين نه خلاص شي، شاهي تخت نه راپرېوځي، بې پته او بې پردې شي، ملا يې ماته شي.

صالح بن جناح الدمشقي رحمه الله - السير ۳ج- ۲۲۲مخ

## د بريا سرليک؟!

لوړ همت د فلاح عنوان دی او ټيټ همت د محرومتيا عنوان دی.

لوړ همت د نورو همتونو په وړاندې داسې دی لکه لوړ مرغه چې د نورو مرغانو له سرونو بره الوت کوي، په غورځېدلو نه راضي کېږي او نه ورته هغه افتونه رسېږي کوم چې دې نورو ته رسېږي کله چې همت

عالي وي له افتونو بچ او ساتلی وي کله چې ښکته شي بیا پرې له هر لوري افتونه بریدونه کوي، ځکه افتونه تولي تولي خواره دي او ښکته فضا کې یې د جذب ځواک ډېر پیاوړی وي، لوړو ځایونو ته نه شي پورته کېدلی، ځکه هلته بیا دوی جذب کېږي او خپل طاقت له لاسه ورکوي. [مدارج السالکین ۳ج- ۱۲۹مخ]

د وخت اشنا!

ته هم د لوړ همت اشنا شه چې لوړو پوړونو ته ورسېږې، د کم همتو ملګرتیا مه کوه چې بیا به دې ناخوالې او کړاوونه خپله غېږه کې راونغاړي او همله به پاتې شې.
خومره ښه پیغام دی :

هر منزل ته په مزل لاره رسېږي
د همت پیزار چې ځوك ورته په پښو کا

## غوره وخت او غوره لمونځ

محمدمصطفی صلی الله علیه وسلم ویلي : (تر ټولو غوره لمونځ پر جمع د جمعې د ورځې د سبا لمونځ دی). [ژباړه]

## ژر شه لمر پرېوځي!؟

په هېڅ څیز دومره نه پښېمانه کېږم، څومره چې په هغه ورځ پښېمانه کېږم چې لمر یې پرېوځي، عمر مې کم شي او عمل مې پکې زیات نه شي. [عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه]
ژر شه! وخت دې ګرانبیه کړه، ورځ تېرېږي او بیا دا ورځ نه راځي.

## زرينې شپې

د اذان د اورېدلو وخت دې پر دې ذکر قيمتي کړه :
محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم ويلي : څوک چې د اذان اورېدلو په مهال ووايي : (أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلا اللهُ، وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، رَضِيتُ بِاللهِ رَبًّا وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولًا، وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا) [1]
ګناهونه به يې وبښل شي. [رواه مسلم]
اذان واوره د اورېدلو شېبه يې په ياد شوي ذکر ونمانځه، کلمات يې په مسنون ځواب، ځواب کړه او دا هم له ياده مه باسه چې (د اذان پر مهال دعا قبلېږي).

## د قيامت رڼا

محمدمصطفی صلی الله عليه وسلم ويلي: ( څوک چې د شپې په تياره کې جوماتونو ته ځي، الله تعالی به د قيامت پوره رڼا ورکړي).
پام مو وي چې د رڼا دا زيری هېر نه کړئ.

## دا زېری هم تا لپاره دی!

هغوی چې په تيارو کې جوماتونو ته ځي د قيامت په ورځ د بشپړې رڼا زېری ورکړه، د سحر او ماسختن لمونځونو ته لاړ شه، په جمع يې ادا يې کړه، دا نبوي زېری هم تا لپاره دی، يوازې ته د همت خپلې په پښو کا تيارو کې جومات ته لاړ شه چې په سخته ورځ د پوره رڼا خاوند شې.
هغه شېبو کې چې د کور دروازه پرانيزې، له اندامونو دې د اوداسه اوبه څاځي، ژبه دې پر تسبيح، حمد تهليل او تکبير لمده وي، د

---

1 مسند أحمد ط الرسالة (۳/ ۱۳٤)

استغفار په ویلو ځان ملامته ګڼي، لاره کې ملګری دې یوازې د بدن سیوری وي او په پټه دې یوازې اسماني ملائک ملګرتیا کوي، طبیعي ده چې لاره کې به د تیارو له ستونزو ځورېږې، مګر د محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم د رڼا زېری هم تا لپاره دی، تکړه شه د سبا ښکلی وخت دې لا زیات نور هم ښکلی او برکتي کړه.

م.غ فاروقي

## د بریا څلور بنسټونه

- د الله تعالی رضا : چې الله تعالی در څخه راضي وي.
- چې ګر چاپېره خلک درنه راضي وي، لکه خپله کورنی، ګاونډیان، دوستان او نور...
- چې له خپل ځان نه راضي او د الله تعالی پر ستره ډالی خوښمن اوسې.
- چې خلکو ته داسې ګټور عمل وړاندې کړې چې له مرګه وروسته یې هم ګټه در ورسېږي. [دکتور عائض القرني]

## د بریا په سترپا کې؟!

بریا په سترپا او زیار ګاللو تر لاسه کېږي!
بېړه وکړه ستا د وخت ګانه کار او زیار دی، که غواړې ستر شخصیت او وروستي نسلونه دې پر بریاوو وویاړي، وخت سره مینه وکړه، ارزښتمن یې وګڼه او د کار او عمل پر ګرانبیه ګانه یې سینګار کړه. [م.غ فاروقي]

## برکتي وخت؟!

برکتي وخت هغه دی چې پیغمبر ورته دعا کړې.

محمد احمد السامي ستر یمني لیکوال او وزیر و هغه په خپل یو کتاب کې لیکلي : زما لپاره تر ټولو ښایسته وخت د سبا د لمانځه نه وروسته وخت دی، ځکه د راحت احساس پکې کوم او په ارام سره پکې خپل لیکل کوم. [دکتور عائض القرني]

## د زړه ژوند

په قران کې تدبر او د پیشمني وختونو کې الله ته عاجزي د زړه د ژوند کیلي ده، د استغفار او تقوی سره ګرځېدل د رزق کیلي ده.

ابن قیم رحمه الله - حادی الارواح

که ژوندی زړه او پراخ رزق غواړې، وخت دې ګرانبیه کړه او دا ځلور نسخې وکاروه !

## ځلور وعدې :

الله تعالی قران کریم کې له خپلو بنده ګانو سره ځلور وعدې کړي :

فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ. البقره ۱۵۲

ژباړه: تاسو ما یاد کړئ، زه به تاسې یاد کړم.

لَئِن شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ.

ژباړه: که تاسو د نعمتونو شکر ادا کړ نو زه به درته په نعمتونو کې زیاتوالی راولم.

وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ.

ژباړه: او ستاسو رب ویلي: له ما نه دعا وغواړئ، زه یې قبلوم.

(وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ) الأنفال: ۳۳

ژباړه: او نه دی الله تعالی چې دوی ته عذاب ورکړي، په داسې حال کې چې دوی استغفار وايي.

بیړه وکړه د وخت ناوې ته د ذکر، شکر، دعا او استغفار ګاڼه جوړه کړه.

## د مطالعې امت

د قران تلاوت، د نبوي سیرت او نورو اړینو علمونو کتابونو مطالعه دې له یاده ونه وځي، ته نه پوهېږې چې دا امت د مطالعې امت دی، د لوست امت دی، دا امت به له علم او قلم سره مینه ساتي، د خپل زړه محل به د مطالعې په مټ رڼا کوي، دماغونو ته به معنوي او علمي پیاوړتیا وربخښې، د ګټورې مطالعې په وسیله به ژوند ته مثبت بدلون ورکوې، د ژوند ناوې به د مطالعې پر ګاڼه پسولې، خپل ځان به پوهوې او هم به نورو ته د پوهې سوغات ورکوې، ویښ او بریالي ملت هغه دی چې د کتاب مطالعې سره علاقه لري، خپل کور کې ځانګړی کتابتون لري، خپلو کوچنیانو ته د مطالعې روحیه ورکوي، له کتاب او قلم سره یې داسې مطالعې ته هڅوي چې د هغوی ژوند ته په دنیا او اخرت کې د سعادت رنګ ورکوي، پوهان وايي : که غواړې چې د یو ملت راتلونکې وپېژنې، وګوره چې کوچنیان یې څه کوي.

ستا د عقیدوي او مذهبي کتاب پیل هم په (اَقْرَأْ ، ولوله) شوی، د لومړي وحې پیغام هم د لیک لوست درس ورکوي، هو؛ داسې درس چې دوه ځلې د لوست امر کوي او بیا درې ځلې د علم تعلیم او تعلم یاد نمانځي او یو ځل د علم وسله (قلم) راپېژني.

ٱقۡرَأۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلَّذِي خَلَقَ ﴿١﴾ خَلَقَ ٱلۡإِنسَٰنَ مِنۡ عَلَقٍ ﴿٢﴾ ٱقۡرَأۡ وَرَبُّكَ ٱلۡأَكۡرَمُ ﴿٣﴾ ٱلَّذِي عَلَّمَ بِٱلۡقَلَمِ ﴿٤﴾ عَلَّمَ ٱلۡإِنسَٰنَ مَا لَمۡ يَعۡلَمۡ ﴿٥﴾ .

اوس نو د وخت په نظام کې مطالعې ته وخت ورکړه چې هم وخت او هم ستا شخصیت ښکلی شي. [ژباړه]

خزیمه بن ثابت رضی الله عنه د حدیث راوي دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي: د مظلوم له ښېرا نه ځان وساتئ ځکه چې دا په وریځو ور پورته کېږي او الله تعالی ورته وایي: پر خپل عزت او جلال مې دې قسم وي هرومرو به دې مرسته کوم، که څه هم چې لږ وروسته وي. [صحیح الجامع الصغیر ۱۱۷ / ۱ج- ۸۴ مخ]

انس رضی الله عنه د حدیث راوي دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي: د مظلوم له ښېرا نه ځان وساتئ، که څه هم چې کافر وي، ځکه د مظلوم د ښېرا په وړاندې حجاب (پرده) نه وي. [۱۱۹- ۱ج-۸۴مخ]

## اکسیجن

لمونځ اکسیجن دی، څوک چې لمونځ پرېدي، ځنګه ژوند به وکړي.
ژباړه

## ستورې په اسمان کې

ستر مجتهد پرهېزګار عالم او امام محمد بن ادریس الشافعي رحمه الله وایي : امام استاد وکیع الجراح رحمه الله ته مې د حافظې دکمزورتیا شکایت وکړ، هغه راته د ګناهونو د پرېښودلو لارښوونه وکړ او په دې یې

پوه کړم چې علم نور (رڼا) ده او د الله تعالی نور ګناهګار ته نه ورکول کېږي.

ګرانه لوستونکيه!

د الهي نور (علم) د زده کړې لپاره متې راونغاړه، همداشېبه هوډ وکړه، د علم د زده کړې لپاره پلان برابر کړه، عملي بنه ورکړه، د علم په ستر نعمت به د الله تعالی پوره پېژندګلوي ترلاسه کړې، له ګناهونو به وژغورل شې، روح او بدن به دې نوی ژوند خپل کړي، شخصيت به دې وده وکړي، ستوری به شې او خلک به دې په وسيله خان د بريا تر منزله رسوي.

جليل القدر صحابي د نبوي محفل برخوال ابو درداء رضی الله عنه وايي: عالمان په خلکو کې داسې دي لکه ستوري په اسمان کې چې خلک پرې لارې موندلی شي.

ته هم ستوری جوړېدلی شې، يوازې نسخې وکاروه:

په الله تعالی باور ولره، پر ځان باوري شه، همت سره غاړه غړی شه، ان شاءالله چې لوړ همت او د عمل کښتی به دې د سمندر له طوفانونو بچ او د علم پر اسمان به ځلانده ستوری شې. [ژباړه]

## يوه دقيقه يو پر (۹۰۰) ؟!

غواړې چې دقيقې دې قيمتي کړې؟

يو ساعت ۶۰ دقيقې دي، يوه دقيقه ۶۰ ثانيې ده، که غواړې په اسانۍ سره هرو لسو ثانيو کې ۱۵ ځلې استغفرالله ويلی شې، نو؛

(۹۰۰=۶۰×۱۵)

(۵۴۰۰۰=۶۰×۹۰۰) [م.غ فاروقي]

## ملنګه دوه ګټې دې وکړې

(لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ) [1]

ژباړه : هغه چا لپاره چې نېکي کوي، نېکي ده او زیاتي نعمتونه دي. (جنت) نه دې دیدن باره کې معلومات راواخیستل شي.

## ته تش وختونه نه لرې؟

له وخت نه دې ګټه واخله، ته هېڅ اوزګار نه یې، نېکیانې ډېرې زیاتې دي، انتظار باسي چې ته یې ترلاسه کړې، وخت دې ګرانبیه کړه، ځانګړی جدول برابر کړه د نوافلو، مریضانو پوښتنې، خپلوانو پالنې، دوستانو پالنې، هدیرو ته ورتګ او نورو ښایسته عملونو لپاره پکې ځای ورکړه، تش وختونه نه لرې ځکه ته د یو هدف لپاره پیداکړای شوی یې، هغه هدف ترلاسه کول ستا مسؤلیت دی. [م.غ فاروقي]

## په حرم کې نفل!

سفیان ثوري رحمه الله به چې مسجد حرم کې د ماښام لمونځ اداکړ بیا به یې دوه دوه رکعاته نفل کول، سر به یې په سجده ایښی و چې د ماسخوتن لمانځه لپاره به اذان وشو. [ژباړه]

## د حساب نړی

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنفِقُواْ مِمَّا رَزَقۡنَٰكُم مِّن قَبۡلِ أَن يَأۡتِيَ يَوۡمٞ لَّا بَيۡعٞ فِيهِ وَلَا خُلَّةٞ وَلَا شَفَٰعَةٞۗ وَٱلۡكَٰفِرُونَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٢٥٤﴾ البقرة ۲۵۴ ایت

ژباړه: ای ایمان والاو! خرچ کوئ له هغې نه، چې درکړي دي موږ تاسو ته، مخکې له دې نه چې رابه شي ورځ (د قیامت)، نه به وي

---

[1] مسند أحمد مخرجا (۳۱/ ۲۶۵)

خرخول په هغې کې او نه دوستانه او نه به سفارش وي (کافرانو لره) او کافران دوی لوی ظالمان دي.

وخت مو خپل يون ته بدلون نه ورکوي، د کائناتو نظام پر خپل ټاکلي محور چورليز چلېږي، ژر شه د هغه سترې ورځې له راتلو وړاندې پر اړمنو خلکو مال ولګوه، جاري صدقې تل رواني وساته، هوښيار کسان له همدا نن ورځې ګټه اخلي هغوی په دې پوه دي چې اسرافيل عليه السلام د شپېلۍ پوکولو لپاره د انتظار شېبې شماري، هو؛ د شپېلۍ وروسته حالات بدلېږي، د حساب ترۍ جوړېږي، د عمل لړۍ بندېږي، هلته به بيا اخيستل او خرخول نه وي، دوستانه به نه جوړېږي، او د الله تعالی د حکم پرته به څوک نورو لپاره شفاعت نشي کولی، ژر شه همدا نن ورځ غنيمت وګڼه، سبا لا د ژوند په قاموس کې نشته.

م.غ فاروقي

## د پرمختګ راز

ستا د پرمختګ راز په قدم کې دی، ډېر مه کېنه پاڅېږه قدم واخله او د قدم، قدم په وسيله ځان خپل هدف ته ورسوه.

وَبَشِّرِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ عِندَ رَبِّهِمْ ۗ قَالَ ٱلْكَٰفِرُونَ إِنَّ هَٰذَا لَسَٰحِرٌ مُّبِينٌ ﴿٢﴾ سورة يونس ۲ ايت

ژباړه: او زېری ورکړه ايمان والاو ته چې يقيناً دوی ته مرتبه د رېښتياو ده په نزد د رب د دوی.

تفسیر معارف القران لیکلي: "دا چې د انسان د سعیې او کوشش، عمل او ددې د سببونو د ترقی او پرمختګ ذریعه قدم وي، له دې امله مجازاً اوچتې مرتبې ته قدم ویل کېږي. [معارف القران ۴ج-۵۰۰مخ]

## ببړته نه راګرځي

زموږ د عمر هره دقیقه داسې ساه ګاڼې دي چې ببړته نه راګرځي، نو؛ ستا هره ساه دې د الهي ذکر خوند او خواږه ولري. [زباړه]

## یوه شېبه!؟

د هغو خلکو په اړه فکر کولو کې یوه شېبه هم مه ضایع کوه، چې بې بد ګڼي. [ایز نهاور]

## مینې

هغوی ته ډېر وخت ورکړه چې مینه درسره لري. [م.غ فاروقي]

## وخت ریباري کوي

د وخت ضایع کول له مرګ نه هم سخت دي، ځکه د وخت ضایع کېدل دې له الله تعالی اوا خرت سره اړیکه پرېکوي او مرګ دې د دنیا او د هغې له اوسېدونکو نه جداکوي. [ابن قیم رحمه الله]

## د لاسونو په هېنداره کې

یوه ثانیه وخت دې ته ورکړه، د ښي لاس ورغوي ته دې وګوره د (۱۸) لیکل شوي عدد به پکې وګورې، د چپ لاس ورغوي ته وګوره د (۸۱) لیکل شوی عدد به پکې وګورې، دا دواړه چې جمع کړې (۱۸+۸۱=۹۹) نه نوي ترې جوړېږي.

اسماء حسنی هم په يو حديث کې ۹۹ ښودل شوي.

محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم ويلي: ( إِنَّ لِلَّهِ تِسْعَةً وَتِسْعِينَ اسْمًا، مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ )[1]

ژباړه: د الله تعالی ۹۹ نومونه دي، چا چې ياد کړه، جنت

اسماء حسنی ياد کړه، وخت او شپې دې پرې ښکلې کړه دا شرعي وسيله ده الله تعالی ته پرې ځان نږدې کړه او خپل هر حاجت ددې قراني وسيلې په مرسته وغواړه.

کله چې دا عمليه اجرا کړې (۸۱ - ۱۸=۶۳) نو؛ د محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم عمر ترې جوړېږي.

ګرانه! هيله ده چې د لاسونو په هېنداره کې له دې رازه ګټه واخلې او خپل وخت د الله تعالی په رضا کې تېر کړې. [محمد غني فاروقي]

## سبا د لمر ختلو وخت؟

د سبا لمونځ ته (صَلَاةُ الْفَجْرِ) یانې د سبا لمونځ نوم اېښودل شوی، ددې نوم (صلاة الاستيقاظ) د بېدارېدلو لمونځ نه دی چې کله له خوب نه موړ شې او بيا لمونځ وکړې.

د هغه چا په خبر شه چې د سبا لمونځ د سبا په وخت کې کوي، نه د هغه چا په خبر چې د سبا لمونځ د لمر ختلو په وخت کې کوي.

ژباړه

## له فتنو ځان ژغورې؟!

که غواړې له فتنو نه وژغورل شې، د شپې په وخت کې الله تعالی ته ودرېږه!

[1] مسند أحمد ط الرسالة (۱۲/ ٤٦٩)

علامه ابن عثیمین رحمه الله ویلي: قیام الیل (تهجد) د فتنو نه د وقایې او ځان ساتلو یو سبب دی.

شرح البخاري۹ج- ۱۰۱مخ

## نن یې بیا سفر دی؟!

ډېرې لږې ورځې دي، بیا یې سفر دی، د عمل زمانه ختمېږي او د جزا (بدلې) زمانه پیلېږي، صبر وکړه نورو ته هم د صبر سپارښتنه وکړه تر دې چې له هغه څه نه برخمن شې چې صبرناک خلک ترې برخمن دي.

علامه محمد صالح العثیمین رحمه الله /شرح الشافیه۴ج- ۵۹مخ

## د شیطان مدرسه!

شیطان د خپلې ازلي دښمنۍ پر بنیاد هڅه کوي چې مؤمن بې لارې او خپل ژوند کې یې ګډوډ کړي، کله مومن ته د ماتې فرصتونه مخې ته ږدي، کله د فقر او نا امېدی او کله ورته بیا د فحشا او بې حیایي تصویرونه انځوروي، قران کریم د شیطان د مدرسې د منهج او نصاب نه داسې پرده پورته کوي:

ٱلشَّيۡطَٰنُ يَعِدُكُمُ ٱلۡفَقۡرَ وَيَأۡمُرُكُم بِٱلۡفَحۡشَآءِۖ وَٱللَّهُ يَعِدُكُم مَّغۡفِرَةٗ مِّنۡهُ وَفَضۡلٗاۗ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٞ ﴿٢٦٨﴾ سورة البقرة ۲۶۸ ایت

ژباړه: شیطان وېروي تاسو له فقیرۍ نه او حکم کوي تاسو ته (په وسوسې) په شومتیا سره او الله تعالی وعده کوي له تاسې سره د ښښنې، د خپل طرف نه او د زیاتوالي او الله پراخ فضل والا دی، عالم دی په هر څه.

## د رحمان مدرسه!

د رحمان ذات رحمت پراخه دی، هغه رحمان دی، رحيم دی، کريم دی او پر خپلو بنده ګانو د مهربانۍ مور او مهربان پلار نه ډېر شفقت او مهرباني کوي، د رحمان مدرسه کې ايمان (باور) صبر، توکل، د زړه شتمني، د زړه رڼا، اطمنان، هيله، فضل او ښېنه ده.

د رحمان مدرسه په ټوليز ډول د هيلې مضامين تدريسوي، ځکه له هغه سره د هر څه خزانې دي او د هر بنده اړتيا د خپل پراخ علم په وسيله درک کولی شي.

م.غ فاروقي

## فکر او ضمير

مينه فکر کولو ته اړتيا نه لري، مينه يوازې ضمير ته اړتيا لري.

ژباړه

## د وفا جواز؟!

مينه او ريښتينولي تړلی ښار دی، يوازې هغه ورننوتلی شي چې د وفا جواز ولري.

ژباړه

## زه اوس هم سپوږمۍ ته ګورم!

هغه مهال مې د ژوند بڼ ته تازه سپرلی راننوتی و، د سبا خوشبويه نسيم ته يې د ګلونو او ګلپاڼو د مستولو سپارښتنه کړې وه، پرخه به هم هر سحر د ګلابونو په رخسارونو ورېده او د ګلپاڼو شونډو ته به يې د سرو انارو سرخي ورکوله، هيلې مستبدلې او خيالونه ځوانېدل، عقل مې هم د ماشوم په څېر د اختريزو مېلو په پار د خيالونو په ټالونو کې زنګل.

د ژوند رنګینیو د مینې په ټال کې ورکېنولم، په ورو ورو یې د مینې شاګرد او بیا یې له مینې زما د عمر څو سپرلي خار کړل، دا منم چې د طبېعت په نړۍ کې سپېلني نازولو ته لوګی کېږي، لونګ نه غاړه کې جوړېږي، هو؛ ګلونه پر څانګو بارېږي، شمع پتنګ ته اوښکې تویوي، بورا له ګلونو تاوېږي، شمع ژړېږي، پتنګ هم د تاریخ روایاتو ته زیان نه رسوي، د عشق په مدرسه کې د شمع مینې ته روح او ځان نذرانه کوي او خپل نازکخیاله عاشقانه بدن په اور سوزوي او خپل غږ د مینې په یاد تل لپاره د چوپتیا لاندې پوړ ته سپاري.

پوهېږم، وخت بدلېږي، حالات بدلېږي، د زماني روایات بدلېږي، مګر زړه نه بدلېږي، ستا د مینې د رخسار د خاطرو البم ته د درناوي او ناز په یاد (اوس هم سپوږمۍ ته ګورم) سپوږمۍ راته په چوپه خوله رازونه وایي او پر دې مې پوهوي چې وخت زما په خبر نه دی، ځکه وخت چې لاړ شي بیا نه راځي، مګر زه بیا هم راځم!!! بیا هم راځم!!

م.غ فاروقي

## د خوشحالۍ اشنا

څوک چې د خپګان وخت کې ونه موسم (ګورم)، د خوشحالۍ پر مهال مې په کار نه دي.

ژباړه

## د ستړیا احساس

په انتظار کې د ستړیا احساس مه کوه، څوک چې غواړې هرومرو به یې پیداکړې.

ژباړه

## ښکلې خبره

په ریښتینولۍ کې تر ټولو ښکلې خبره داده چې له انتظاره خالي وي.

زباړه

## څلور تنه وپېژنه؟!

له هغه سره بد مه کوه چې مینه درسره کوي.

هغه ته مه وایه چې مشغول یم، ځوک چې تاته اړتیا لري.

له هغه سره ټګي مه کوه، چې پر تا باور لري.

هغه کس مه هېروه، چې تل تا یادوي.

ژباړه

## د وخت ساتنه

ځوک چې د خپل وخت ساتنه د الله تعالی په ذکر، د قران په تلاوت، د نېکانو په ملګرتیا کوي او د غافلینو له ملګرتیا او ناستې نه ځان لرې ساتي، زړه یې سپېڅلی او نرمېږي.

علامه ابن باز رحمه الله/مجموع الفتاوی۵ج- ۲۴۴مخ

## ګل په لاس درته ولاړ یم!؟

هر مئین ته خپل محبوب تر بل هر څه ډېر ګران وي، ډېر ځلې وینئ او هم اورئ چې مئین خپل محبوب خپل ژوند، خپل روح، خپل ځیګر او خپل ارمان بولي، مګر سر له دې چې له خپل مئین سره ناسته ولاړه وخت تېرول د خپل زړه ډاډ او سکون بولي،عقل یې د مینې نشې ولکه کړی وي، سترګې یې ړندې او غوږونه یې کاڼه وي یوازې خپل ځان او خپل جانانویني او خبرې یې اوري مګر مئین له دې هر

څه سره وخت له پامه نه غورځوي ، انتظار يې نه خوښېږي که محبوب يې د ګل او ګلدستې اخيستلو کې عاشقانه ناز کوي ، خندا کوي.
دی ورته وايي :

ګل په لاس درته ولاړ يم
يا مې ګل واخله يا رخصت راکړه چې ځمه

م.غ فاروقي

## خيال د بريا زانګو ده!؟

يو ځل يې انسان په خپلو داخلي وړتياو کې بريا ويني او بل ځل يې بيا د عمل په ساحه کې په خپلو سترګو ويني.
لومړی ليدنې ته خيال وايي: په خيال کې د بريا انځورول هم بريا ده که خيال يې ونه روزي، د ژوند، تفريح، پرمختګ نقشه ورته انځور نه کړي نو بريا به څنګه او په کوم لباس کې ځان ښکاره کړي، دا زده کړه چې د خيال نړۍ ستا د بريا لپاره لومړنۍ مدرسه ده.

م.غ فاروقي

## وخت دې سپما کړه!؟

خپل محبوب ته يې وليکل : ...
محبوب يې هم ورته وليکل : ...
جان څېرې يې؟ زړه مې ډېر خپه دی.

زړګي ته ډاډ ورکړه پخپله
مدام به څوک ډاډه کوي ويشتلي زړونه.

م.غ فاروقي

## شاهي محل که د مينې پلازمېنه؟!

د خپل دوست وړې، وړې تېروتنې زړه ته مه نيسه ، ته نه پوهېږې چې هغه ستا مينې لپاره کوم ځای کې ګور جوړ کړی؟

هغه چې د بدن د هېواد پلازمېنه يادېږي، د رحمن عرش بلل شوی، هو؛ د «زړه» شاهي محل درته يادوم.

م.غ فاروقي

## پرخه

الله تعالی قران کريم کې له مؤمنانو نه هغوی ستايلی چې د الله تعالی د رضا لپاره او د خپلو زړونو د کلکوالي او سکون لپاره خپل مالونه لګوي د خپلو باغونو مېوې فقيرانو او بې وزلو ته ورکوي، رازق الله ورسره د دوو چنده مېوو ژمنه کړې.

وَمَثَلُ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمُ ٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِ ٱللَّهِ وَتَثْبِيتًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍۭ بِرَبْوَةٍ أَصَابَهَا وَابِلٌ فَـَٔاتَتْ أُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ فَإِن لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٢٦٥﴾ البقرة ۲۶۵ ايت

ژباړه : او مثال د صدقاتو د هغو کسانو چې لګوي مالونه خپل لپاره د طلب د رضا د الله تعالی او په کلکوالي د نفسونو د دوی، په شان د يو باغ دی په سربه زمکه چې ورسېږي هغې ته ډېر باران، پس ورکوي مېوې خپل ډېرې زياتې، پس که ونه رسېږي هغې ته ډېر باران نو؛ لږ باران هم کافي دی او الله تعالی ستاسو عملونهويني.

## مريم ته ولې بې موسمه مېوې راتلې؟

يَٰمَرْيَمُ أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا ۖ قَالَتْ هُوَ مِنْ عِندِ ٱللَّهِ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ يَرْزُقُ مَن يَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٧﴾

ژباړه: ای مريم ! له کوم ځای نه تا لره دا رزق راځي؟

مريم وويل : دا د الله تعالى له طرفه دي، يقيناً الله تعالى رزق ورکوي چاته چې وغواړي، بې حسابه.

مريم هغه مهال د کرامت ددې ستر پړوني برخمنه شوه چې وخت يې د الله ياد، تسبيح او عبادت ته ځانګړى کړ او همدا يې د ژوند مقصد وګاڼه.

## دا او هغه برابر دي؟!

قران کريم هغوى ستايلي چې جوماتونه په ذکر، تسبيح او تلاوت ودانوي.

إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ} [التوبة: ۱۸]
ژباړه: يقيناً ودانوي جوماتونه د الله تعالى هغه خوک، چې پر الله تعالى او د اخرت په ورځ ايمان لري.

فِي بُيُوتٍ أَذِنَ اللَّهُ أَنْ تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ يُسَبِّحُ لَهُ فِيهَا بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ
رِجَالٌ لَا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ} [النور: ۳۷]
ژباړه: په کورونو کې حکم کړى دى الله تعالى، چې عزت وکړاى شي د هغې او ياد کړاى شي په هغې کې نوم د الله تعالى، تسبيح وايي هغه لره، په دې کورونو کې سبايي او بېګايي.

محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم ويلي: الله تعالى ته غوره ځايونه جوماتونه دي او الله تعالى ته ناکاره ځايونه بازارونه دي.

(الحديث)

څوک چې الله تعالى لپاره جومات جوړ کړي، الله تعالى به ورته په جنت کې کور جوړ کړي.
همدا راز محمد صلى الله عليه وسلم ويلي: هغه کس به د قيامت په ورځ د عرش تر سيوري لاندې وي چې زړه يې جومات پورې تړلى وي.

اوس نو کوم يو غوره دی، هغوی چې ډېر وخت په جوماتونو کې تېروي او که ډېر وخت په بازارونو کې تېروي؟!

(وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَشَدُّ حُبًّا لِّلَّهِۗ ﴿١٦٥﴾ البقرة ١٦٥ ايت

ژباړه: او ايمان والا ښه خلک دي په مينه د الله تعالى کې.

دې ايت کې د مؤمنانو مينه له الله تعالى سره ستايل شوې، راځئ خپل وخت الله تعالى سره په مينه ښايسته کړو.
وَٱذۡكُر رَّبَّكَ كَثِيرٗا وَسَبِّحۡ بِٱلۡعَشِيِّ وَٱلۡإِبۡكَٰرِ ﴿٤١﴾ آل عمران ٤١ ايت
ژباړه: او يادوه رب خپل ډېر او پاکې وايه بېګاه او سبا.

د وخت دوه غوره خواوې، سبا او بېګاه د الله تعالى په ذکر او تسبيح ښايسته کړه.

محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم په دعا کې هم د عالي همت پاللو درس ورکړی، د جنت غوښتنې په وخت کې سپارښتنه کوي: کله چې له الله تعالی جنت غواړئ نو فردوس جنت ترې وغواړئ.

(عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ سَأَلَ اللَّهَ الشَّهَادَةَ صَادِقًا، بَلَّغَهُ اللَّهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ، وَإِنْ مَاتَ عَلَى فِرَاشِهِ) [1]

ژباړه: امامة بن سهل بن حنیف د خپل پلار نه روایت کړی، رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي: څوک چې الله تعالی نه په صدق سره د شهادت غوښتنه وکړي، الله تعالی يې د شهیدانو مرتبو ته رسوي، که څه هم چې په خپل بستر مړ شي.

## نیت او همت

د مومن نیت او همت له عمل نه غوره دی.

ژباړه

## د خوشحالی لس کونجیانې

ایمان، لمونځ، صبر، تلاوت، تسبېح، قناعت، رضا (خوش باوري) فکر کول، عفوه او تېرېدل.

دکتور عائض القرني

گرانه لوستونکیه!

که د امن، پرمختګ، رحمت، سپېڅلتیا، ډاډمنتیا، هوساینې، مانیزو ودانیو ته ورننوتل غواړې، فکر وکړه او د نورو له تېروتنو تېر شه، همدا

---

[1] سنن أبي داود (٢/ ٨٦)

لس کونجیانې له ځان سره کړه او ددې په وسیله بند قلفونه پرانیزه او د دنیا او اخرت د خوښیو ګلبڼونو ته ورننوځه چې هم خپله د ژوند او وخت په خوږو موړ شې او هم يې نورو ته د سوغات په توګه ورکړې.

## د لمانځه تله

که غواړې چې پر (میزان عادل) دې ایمان او له الله تعالی سره مینه وزن کړې، لمانځه سره مینه وکړه، د ایمان او الهي مینې د تول لپاره ددې په څېر بله تله نشته.

ابن قیم رحمه الله

## ستر ارمان

د قیامت په ورځ به د يو انسان لپاره تر ټولو ستر ارمان او د افسوس حالت دا وي چې خپلې نېکیانې د بل چا د میزان په تله کې وګوري.
هڅه وکړه، ژبه دې د غیبت او چغلخورۍ نه وساته چې نېکیانې دې پردۍ نه شي.

سید التابعین به حسن بصري رحمه الله به هغه چا ته د مننې په توګه ډالۍ لېږلې چې چا به يې غیبت کړی و.

م.غ فاروقي

## د تاریخ ستوری

که غواړې چې د ژوند په هر لوبغالي کې اتل لوبغاړی شې.
که غواړې چې تاریخ دې په خپل غېږ کې وساتي.
که غواړې چې تاریخ دې د زړه په کور کې په مینه وساتي.
که غواړې چې نوم دې د تاریخ په ځلي ولیکل شي.
که غواړې چې د ایمان او عمل صالح په جوړه کې رابشکاره شې.
که غواړې چې خلک دې زړونو کې وساتي.

پاخبر ه!
له همدې شېبې دې د فطرتي وړتياوو په ويښولو پيل وکړه، وړتياوې دې ويښې کړه، ويې روزه چې د خپلو وړتياو په خلولو د تاريخ ستوری شې.

م.غ فاروقي

همت مو په کار، تجربه او د همتناکو د تاريخ پر لوستنه وروزئ!
وخت ستا دی، ته يې د همت په گاڼه سينگار کړه.
قران کريم هم د همت لور ته بلنه ورکوي.

**تاته پته نه شته چې بدليږي وخت؟!**

څه ښکلي گلان يې پانې پانې کـړل
هسې خو بې درده نه يادېږي وخت
دا خو گله ستا په تماشـه شــــو نن
دومره گنې چـــاته ايساريږي وخت

اوس هغه زاړه قـــدرونه مه غـواړه!
تـــاته پته نه شته چې بدليږي وخت

رحمت الله درد

## ډېر عمر

ډېر عمر له دوزخ نه نجات نه ورکوي، مګر هغه چې له ډېر عمر سره ايمان او نېک عمل ولري.

يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ أَلْفَ سَنَةٍ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهِ مِنَ الْعَذَابِ أَن يُعَمَّرَ ۗ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿٩٦﴾ البقره ۹۶ ايت

## د خير؟ او که د شر کيلي له ځانه جوړوې؟!

سهل بن سعد رضی الله عنه د حديث راوي دی، رسول الله صلی الله عليه وسلم ويلي:

دا خير خزانې لري او ددې خزانو لپاره کليګانې دي، هغه چا لپاره خوشحالي ده چې الله تعالی د خير لپاره کيلي او شر لپاره بندونکی ګرځولی وي او هغه چا لپاره هلاکت دی چې الله تعالی د شر لپاره کيلي او خير لپاره بندونکی ګرځولی وي.

رواه ابن ماجه

د حديث نه معلومېږي چې نېکمرغه خلک له وخت نه په ګټه اخيستنه داسې عملونه کوي چې پر مټ يې د خير خزانو ته لاره پيداکوي او بدمرغه بيا بالعکس ځان تباه کوي، ځان نه د شر کيلي جوړوې چې دده په وسيله هر ځای کې شر خپرېږي او د خير لپاره د قلف په څېر کارول کېږي.

ګرانه! که وخت قيمتي کول غواړې، فکر وکړه، عملاً لاس په کار شه، داسې خويونه خپل کړه چې د خير کيلي شې او ستا په وسيله هر ځای

او هر چېرته د خير پلوشې خپرې شي، بيا به نو د كائناتو نړۍ كې هم ته غوره او نېكمرغه انسان يې.

## تسبېح ويونكى شه!

شپه مهال ۳ بجې وې، د اسمان لمن په ورېځو پوښلې وه، مېده مېده باران ورېده، شپې خپل تور څادر غوړولى و، خاموشي هم پر ټول ځواک خپله واكمني پيل كړې وه، د ورښت څاڅكو هم د طبيعت په ژبه د كائناتو له جوړو سره خپلې معصومانه خبرې زمزمه كولې، د خاموشۍ فضا يوازې د يو سپي غږ ماتوله، هو؛ داسې يې ماتوله چې زړونه او غوږونه يې د خپل غږ كودګر اغېز ته ورباله، په ډېر ښكلي او نازكخيالي انداز يې د حال په ژبه د الله تسبېح ويله.

دا خبره نا اشنا مه ګڼئ د الله وينا ده :

وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِۦ وَلَٰكِن لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ ۗ إِنَّهُۥ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا ﴿٤٤﴾

ژباړه: او نشته هېڅ شی مګر، تسبېح وايي، سره د حمد د هغه نه، لېكن تاسو نه پوهېږئ په تسبېح د دوی باندې.

ټول حيوانات، حشرات بلكې ټول كائنات د الله تسبېح وايي، هدهد تسبېح وايي، نور مرغان تسبېح وايي، اوبو كې ماهيان، چنګښان، سوړو كې مېږيان د الله پاكي بيانوي.

ابو معاذ الراوي رحمه الله وايي: هدهد تسبېح وايي، هلاکت دی هغه چا لپاره چې تسبېح نه وايي.

ګرانه لوستونکيه! ته هم تسبېح ويونکی شه، له حيواناتو، مارغانو او حشراتو يې زده کړه چې مکلفيت نه لري مګر د الله حمد او تسبېح وايي، ته چې الله تعالی د انسانيت په کرامت او نعمت نازولی يې، د عقل تاج يې در په سر کړی، له نورو ټولو مخلوقاتو يې په ځانګړي شرف او عزت ياد کړی يې، انساني نسل کې يې د پيغمبرانو لړی پرانيستې، ستا پر نوم يې قران کريم کې سورتونه نومولي، پر تا ډېر حق دی چې د الله تعالی تسبېح، حمد او تکبير ويونکی شې.
ژر شه، وخت ته اړتيا لرې، وخت تاته اړتيا نه لري، ګټه ترې واخله او د مينې په خوږو يې ونازوه.

م.غ فاروقي

## د وخت په مدرسه کې...؟!

د وخت په مدرسه کې له هر چانه ګټه واخله، ستا ژوند د زده کړې لپاره هر څوک څه نا څه سوغات درکولی شي.

عالمان وايي : ژوند کې د هېچا پر پېژندګلوی پښېماني مه کوه، ځکه کره خلک به تاته نېکمرغي درکوي، نا کاره به تجربه درکوي او تر ټول ناکاره خلک به درس درکوي.
نېکمرغي، تجربه او درس هغه ستر څيزونه دي چې د ژوند د خېمې پياوړې ستنې ګڼل کېږي.

م.غ فاروقي

## وخت وفا نه کوي؟!

دا حقيقت دی چې وخت وفا نه کوي، خلک تېروتي وايي : ( ښکلي وفا نه کوي ).

ښکلو سره وخت وفا نه کوي، وخت ډېر ژر ژر خپل رنګونه بدلوي، تېغ وي، جرړې پيدا کړي، تنه يې جوړه، څانګې څانګې شي پاڼې پاڼې شي، شنه لباس کې پوښلې غوټۍ ونيسي، په ورو ورو غوټۍ خپلې نازکې سرې شونډې ګلابي موسکا ته جوړوي، د خندا نه تکه شنه شي، غوټۍ وي پر ګل بدله شي، له بلبل سره خبرې او يارانه پيل کړي، سحر شي بلبل يې د يارانې مستې سندرې زمزمه کوي، په ګلابي يارانه يې وياړي له نورو مرغانو ځان جګ بولي، ځکه ګل ورته په نازکو سرو شونډو خندلي وي، خوږه وږمه يې د يارانې په رنګين اسمان کې د لاس نښه ورکړې وي د سحر ګرانبيه پرخه يې پر ښکلي رخسار سهارنۍ شېبې تېروي، د مينې ځانګړې نړۍ جوړه وي ناڅاپه وخت د بېلتون له خزان سره خبره يوه کړي، بڼ ته د خزان سپېره سيلۍ ورننوځي، څانګې او ګلپاڼې وخوځوي، وږمې يې خورې ورې شي، تنکۍ او نازکې شونډې يې پاره پاره شي، موسکا يې په ژړا بدله، بڼه يې مړاوې او خواشينې شي.

بلبل د تېر په څېر د سبا له نسيم سره جوړه د هيلو او مينې له ډکې ځولۍ سره بڼ ته ورننوځي، ناڅاپه ګوري چې د ګلاب بوټۍ شته مګر څانګې يې له پاڼو او ګلپاڼو تشې او غمځپلې ولاړې دي.

د بلبل نارې خاموشې او سترګې يې د اوښکو مرغلرې سپېره بڼ کې توپې کړې، ناهيلی او تش لاس له بڼه ووځي.

هوکی؛ مینه والو!    دا مې له ژونده زده کړي چې ښکلي نه دي ملامت، گل او بلبل نه دي ملامت، یوازې زه او ته ملامت یو چې د گل له خوشبویه ورمو گټه نه اخلو، سره له دې چې پوهېږو (وخت وفا نه کوي).

م-غ فاروقي

## ژوند او استاد

ژوند له استاد نه هم سخت وي، استاد لومړی سبق ورکوي بیا ازموینه اخلي، ژوند اول امتحان اخلي بیا سبق ورکوي.

ژباړه

## مشغولتیا

انسان دې هېڅکله وزگار نه وي، ځکه شیطان پرې د بدو خاطرو او وسوسو پر مټ واکمني پیلوي، غوره خبره داده چې پر داسې څه ځان بوخت کړي چې ده ته گټه رسوي، نه چې؛ پر داسې څه ځان اخته کړې چې ورته زیان رسوي.

عبدالله ابن باز رحمه الله

## راحت چېرې موندل کېږي؟

له سید التابعین حسن بصري رحمه الله نه وپوښتل شو: راحت چېرې موندل کېږي؟

هغه وویل : د غفلت وروسته سجده کې، او له گناه وروسته توبه کې.

ژباړه

## وختونه دې پر صدقه او مال لګولو ښايسته کړه!

ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمۡوَٰلَهُم بِٱلَّيۡلِ وَٱلنَّهَارِ سِرّٗا وَعَلَانِيَةٗ فَلَهُمۡ أَجۡرُهُمۡ عِندَ رَبِّهِمۡ وَلَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُونَ ﴿٢٧٤﴾

ژباړه: هغه کسان چې خرچ کوي مالونه خپل د شپې او د ورځې، پټ او ښکاره، پس دوی لره ثواب د عمل د دوی دی په نزد د رب د دوی او نه به وي هېڅ وېره پر دوی او نه به دوی غمجن کېږي.

## د الله رحمت

إِنَّ رَحۡمَتَ ٱللَّهِ قَرِيبٞ مِّنَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿٥٦﴾

ژباړه: يقيناً د الله تعالی رحمت نېکو کارانو ته نږدې دی.

ژر شه! د الله رحمت تاته نږدې راغلی، د الله تعالی په ذکر، تسبيح او د قران کريم په تلاوت ځان بوخت کړه چې د الهي رحمت سره غاړه غړې شې، که د رحمت هيله لرې، د وخت ډېره برخه دې د ټولو انبيأکرامو ګډ دين (اسلام او توحيد) ته ځانګړې کړه.
بيړه وکړه!
د الله تعالی رحمت هم ستا په انتظار دی، ايمان دې د عمل صالح په ورېښمين لباس ډولي کړه، چې د الله تعالی رحمت درسره مينه وکړي.
م-غ فاروقي

## همت نارينه دی!

د اسلامي امت په اتفاق سره د الله تعالی د کتاب نه وروسته صحيح کتاب صحيح البخاري دی، امام بخاري له کوچنيتوب نه د همت په روحيه ژوند ترسره کاوه، همدا يې د لوړ او نارينه همت ستره لاسته راوړنه ده چې کتاب يې له قران کريم وروسته درجه کې ځای لري.

## د هيلو باغ؟!

ته د رحمن او رحيم ذات بنده يې، هغه چې سل درجې رحمت لري او د رحمت دا ټولې درجې د ايمان خاوند لپاره دي، د کائناتو نړۍ ستا لپاره ده، ته ډېر ارزښتمن يې، پام چې د الله تعالی له رحمت نه ناهيلی نه شې، د هيلو بڼ دې تاند ساته، هيله ده چې ښې او خوږې مېوې به درکړي.

م-غ فاروقي

## څلور جنتي خويونه

محمد صلی الله عليه وسلم ووېل : په تاسو کې نن چا د ناروغ پوښتنه کړې؟

ابو بکر رضی الله عنه ووېل : ما کړې ده.

رسول الله صلی الله عليه وسلم ووېل : له تاسو نه نن څوک جنازې پسې تللی؟

ابو بکر رضی الله عنه ووېل : زه تللی يم.

رسول الله صلی الله عليه وسلم ووېل : نن چا د روژې په حالت کې سبا کړی؟

ابو بکر رضی الله عنه وویل :ما د روژې په حالت کې سبا کړی.
رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل : نن ورځ چا صدقه ورکړې؟
ابو بکر رضی الله عنه وویل : ما صدقه ورکړې.
رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل : په کوم سړي کې چې په یوه ورځ کې دا څلور صفتونه راجمع شي الله به یې جنت ته ننباسي.
صحیح مسلم

## لمر ختلی؟

وائل بن شقیق رضی الله عنه وایي:
د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه کور ته د سبا لمانځه وروسته ورغلو، وینځه راغله ورته مو وویل : ابن مسعود رضی الله عنه سره ملاقات کوو زموږ لپاره ترې اجازه وغواړه، هغه لاړه اجازه یې وغوښته، راغله ویې ویل : ابن مسعود رضی الله عنه وایي : راځئ!
له اجازې وروسته موږ انتظار وکړ، بیا ورننوتو، ابن مسعود رضی الله عنه وویل : څنګه ځنډ شوئ؟
موږ وویل : کېدای شي کوم کس ویده وي، هغه ویښ کړئ او موږ یې مزاحمت ونه کړو، یوازې داسې ګومان مو وکړ!
ابن مسعود رضی الله عنه وویل : ایا تاسو پر موږ د غفلت ګومان وکړ؟!
چې زموږ کورنۍ کې به هم داسې غافل انسان وي چې د سبا لمانځه وروسته ویده وي، بیا یې تسبیحات پیل کړل، تسبیحات یې ویل، ویل ، بیا یې وینځې ته غږ وکړ: لمر ختلی؟
وینځې وویل : هو؛
ابن مسعود رضی الله عنه داسې دعا وکړه :

(الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَقَالَنَا يَوْمَنَا هَذَا، وَلَمْ يُهْلِكْنَا بِذُنُوبِنَا) [1]

سره له دې چې لا ورځ به تېوله پاتې وه، مګر ابن مسعود رضی الله عنه دعا کې ویل : أَقَالَنَا يَوْمَنَا هَذَا .

رواه مسلم

له دې نه دا زده کېږي چې دا د ورځې لومړنی وخت دی ځوک چې د ورځې د لومړني وخت ساتنه وکړي هغه د ټولې ورځې ساتنه کړې، ځکه دا برکتي وخت دی.

علامه ابن قیم رحمه الله ویلي : سلف صالحینو به ددې وخت ساتلو ته ډېر ارزښت ورکاوه تر دې چې د سفر په مهال به یې ټوله شپه سترړیا او مزلونه ګالل، مګر د سبا لمانځه وروسته نه ویده کېدل، بلکې مسنون ذکرونه او دعاګانې به یې ویلې.

ګرانه لوستونکیه! له تا مې هیله داده چې د ورځې دا لومړنی شیبې په مینه ګرانبیه کړه، د لمانځه وروسته خوب مه کوه، بلکې د الله د کتاب تلاوت وکړه، تسبیحات او د الله حمد او ثنا ووایه چې ټوله ورځ دې نېکمرغه شي، که دا برکتي او له فضیلت نه ډک وخت دې ضایع کړ نو ټوله ورځ دې ضایع کړه.

## د سبا نسیم شه!

د ګلاب ځانګې زلفې خورې ورې کړه، په رخسار یې له مشکو خوشبویه نرګسي پرخه وشینده د غوټیو پر سرو شونډو یې مینه پاله موسکا راوله، زړه یې باغ باغ کړه، د ژوند تېرولو لوړه روحیه ورکړه او

---

[1] صحیح مسلم ۱/۵۶۴

پردې يې پوه کړه چې د ګلاب ګل پر ستونزو پوښلي چاپيريال کې د اغزيو کمربند ماتوي او خپلې ګلورينې مينه ناکې وږمې ازادوي.

م.غ فاروقي

## له زړه نه زړه ته خنګه راغلې؟!

ورځې شپې، مياشتې، کلونه تېر شول، ډېر سپرلي خزان او ډېرې خزان وهلې غوټۍ بيا، بيا وغوړېدې، مينه کوچنۍ وه، په خبرو راغله، قدم يې واخيست، راستره شوه، هو؛ پېغله شوه، مګر تر دې دمه مې، نه د خيال او نه د حقيقت په تعبير کې دا پوښتنه ځواب نه شوه، چې : ( له زړه نه زړه ته خنګه راغلې؟!)

م.غ فاروقي

## رنګينې پلوشې

همت له لاسه مه ورکوه، ستا فطرتي وړتيا پر خپل ځای ده، لمر هر مازيګر خپله سيمه د شپې تورتمونو ته پرېږدي، مګر سحر له خپلو ټولو رنګينو پلوشو سره بيا راپورته کېږي.

م.غ فاروقي

## ګرانبيه عمر

په حقيقت کې د انسان عمر هغه دی چې د الله تعالی په طاعت او بنده ګۍ کې يې تېر کړي، اوږد عمر د انسان لپاره د کمال نښه ده، ځکه ډېر ځلې د يو انسان عمر ډېر لنډ وي، مګر الله تعالی پکې برکت واچوي، هم ځانته او هم نورو ته ګټه رسوي، لکه: د تاريخ په اوږدو کې د اسلامي امت ډېری عالمان چې عمرونه يې کم وو، مګر د امت لپاره يې ډېر خير پرېښی.

ابن عثيمين رحمه الله / احکام القران الکريم۱ج-۳۵۳مخ

## د اخرت سوالگر شه!

د دنیا سوداګر هم تر هغې نه ویده کېږي چې خپلو کاري دفترونو ته مراجعه ونه کړي، چې څومره یې مصرف کړی، څومره یې لګولي او څومره یې ګټلي، نو؛ د اخرت سوداګرو ته پکار دي چې له دنیاوي سوداګرو زیات اهتمام او پاملرنې والا وي، ځکه د اخرت والاو سوداګري د دنیا والو له سوداګرۍ نه ډېره لویه ده.

لقأ الباب ۱ج- ۵۷۱مخ

## اخره خاتمه

د علم په طلب کې مړینه د خاتمې د ښه والي نښه ده، ځکه علم ستر طاعت دی.

حافظ ابن عبدالبر

ابن وهب وایي : دمالك بن انس رضی الله عنه خورته وویل شو: د مالك بن انس رضی الله عنه بوختیا په کور کې څه وه؟
خور یې وویل : قران او د هغه تلاوت.

السیر ۸ج- ۱۱۱مخ

وخت ضایع کول ؛له خپلې برياسره خيانت کول دي.

م.غ فاروقي

د وخت ارزښت مو د شخصيت تضمين دی!

م.غ فاروقي

وخت ستا برخلیک ټاکي!

م.غ فاروقي

د محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم قبر چې جوړشو، بلال رضی الله عنه پرې اوبه وشیندلې.

نورالیقین فی سیرة سیدالمرسلین

دشپې تورتم کې جوماتونو ته لاړشئ چې د قیامت په ورځ د رڼا خاوندان شئ!

م.غ فاروقي

صبرشه!
مازیګره، ګلونه چاته پرېدې؟

م.غ فاروقي

ښه عمل دوخت غوره ګاڼه ده.

م.غ فاروقي

ترټولو ګرانبیه شېبې!
هغه چې لمانځه، ذکر اودقران تلاوت کې تیرېږي.

م.غ فاروقي

ژبه په ذکر لمده ساته، مرګ ناڅاپه راځي.

م.غ فاروقي

درې ځل سورت اخلاص ووایه وخت به دې په قراني رڼا، رڼا شي.

م.غ فاروقي

مینې شته ، مگر داخلاص کمی دی.

م.غ فاروقي

وخت وایي:
زه الهي ډالی یم!
ما مه ضایع کوه!

م.غ فاروقي

باور، په ټولو مینو کې دروح بڼه لري.

م.غ فاروقي

وخت دشخصیت جوړونې لپاره ستره الهي ډالی ده.

م.غ فاروقي

وخت وایې!
که مینه دې راکړه! زه به هم ډېر څه درکړم!

م.غ فاروقي

ژرکوه !
د زړه کور مینې ته وزگارکړه!
دلته کرکه بده ښکاري.

م.غ فاروقي

## د وخت خبره

زه ستا دپرمختگ بېړنی رازیم!

م.غ فاروقي

دوخت قافله روانه ده، که څه ترې غواړې؟ ژرکوه!

م.غ فاروقي

سپين سبا درښا زېرى دى!

م.غ فاروقي

بركتي وختونه مه هيروئ!

م.غ فاروقي

خوږه جمله!
تل دې يادوم!

م.غ فاروقي

نن ورځ دخپل كتاب او پاڼې دنوم په مانا سم پوه شوم.
هو ، بياهم وايم :
وخت له تامينه غواړي!

م.غ فاروقي

الله تعالى پر وخت قسم كړى!
همدايې ستر ارزښت دى.

م.غ فاروقي

وخته!
زه مې انساني نړى ته مينه وركوم
سمه ده؟
ته به يې په مينه قبلوې!

م.غ فاروقي

عالم ، په تياره كې هغه ځلېدونكى بل څراغ ته ورته دى چې له رڼا يې ناپوهان هم ګټه اخلي.
نو؛ ته هم وخت ته ارزښت وركړه او د ژوند ټولو تيارو لارو كې ځلېدونكې څراغونه ولګوه!

عبيدالله فاروقي

مینې کولو ته پیداشوي یو، نه کرکې ته!

م.غ فاروقي

یوازې دلمانځه اودس دې دکوچنیو گناهونو پاکوي.
ژرشه قیمتي چانس دی!

م.غ فاروقي

له هغه چاسره ډېره مینه مه کوه چې وخت درنه غلاکوي!

م.غ فاروقي

ژر شه!
مینه وکړه، مینه ورکړه، زړه ورکړه زړه وغواړه. وخت درنه تیریږي!

م.غ فاروقي

شپې، ثانیې، دقیقې دې کله ځارلي؟
ځومره ژر تیریږي!
که گټه ترې ترلاسه نکړو همدومره ژر تاوني کېږو هم! [م.غ فاروقي]
وخت وایي :
زه درنه مینه غواړم، ته راکې کرکه زده کوې؟ ! [م.غ فاروقي]
وخت وایي :
زه تول ستایم!
خو؛ ته راسره مینه نه شې کولی. [م.غ فاروقي]
وخت وایي :
زه دې ځارم، زما پرمینه ملنډې مه وهه !
ته نه پوهېږې؟
چې مین دخپل محبوب سترگوته گورې. [م.غ فاروقي]
وخت وایي:
زه هم ستایم، که دې مینه راسره وکړه گټه به وکړې! [م.غ فاروقي]

## فرصت له لاسه مه ورکاوه!

یو فرضي لمونځ مو په ۷۰ فرضي لمونځونو بدلیږي.
ته همداشېبه ۷۰ په ۳۰ کې اوبیا۳۰ په ۲۷ کې ضرب کړه چې د څومره لمونځونوخاوندېږې؟!

م.غ فاروقي

## دین ۳ طبقې لري:

لومړنی طبقه اسلام

منځنی طبقه ایمان

اعلی طبقه احسان

څوک یې چې اعلی طبقې ته ورسیږي، نورو ته خپله رسیږي.

سلسلة الاحاديث الصحيحه ۱/۲۹۰

**استغفار ډېر، ډېر وایه!**

استغفار بند قلفونه خلاصوي او بدني قوت پیاوړی کوي.

م.غ فاروقي

سُبْحَانَكَ اللهُمَّ وَبِحَمْدِكَ. أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ. أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ

(وَصَلَّى اللَّهُ عَلَى خَيْرِ خَلْقِهِ مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ وَآلِهِ وَسَلَّمَ)